موسسة العزائم الإعلامية

شرعي دريځ

لا إله إلا الله




الدولة الإسلامية في العراق والشام

د شيخ ابوبكر البغدادي حفظه الله لخواد اعلان
کړای شوي تش په نوم خلافت په اړه د پاکستاني
طالبانو د تحريک شرعي دريځ

# تحريکي شورا

# ته ځواب

**الحمد لله رب البـدء والمعاد الذي فرض على المؤمنين الهجـرة والجهاد لإخراج الناس من عبادة العباد إلى عبادة رب العباد والصلاة والسلام على من جاء بالذبح لدفع الظلم والفساد والردة والإلحاد وعلى آله واصحابه وأتباعـه الصادقين من أهل الإيمان إلى يوم التناد أمـا بـعـد :**

د حق دښمنانو له یوه سنګر څخه په مختلفو شکلونو په حق او حق پرستو رینښتینو مسلمانانو وارونه او حملې شروع کړي دي.

بيا څنګه چې دوی دېې علمه مسلمانانو د دوکه کولو دپاره ځانونه په مختلفو نومونو ، وصفونو او لباسونو راښکاره کړي داسې يې د حملو انواع او وصفونه هم مختلف دي.

چې ددې حملو څخه یوه حمله هغه په موجوده اسلامي دولت او خلافت باندې دا ده چې دا حق ، صحيح او شرعي خلافت نه دی او نه ددې خلافت د خليفه او امام سره بيعت په مسلمانانو لازم دی!!

چې ددې دعوې د اثبات لپاره د وخت بلاعمه وو د هر قسم يهودي سنت عملي کولو څخه کار اخستی چې نه يې مذموم تاويل پريښی او نه ورته په تحريف او تبديل باندې ځانونه بد ښکاره شوي دي او بار بار يې د حق په کلمه لاس ايخی او د عوامو نظرونه يې له هغې څخه اړولي دي دا کار بيا د هر طاغوتي او شيطاني اقتدار ساتونکو او کنجاره خوړونکو درباري ملايانو او برای نام طاغوتي جهاد بدنامونکو تنظيمونو کړی دی .

چې یو قسم ددې باطل پرستو څخه چې مونږیې پرخلاف او ردّ د الله تبارک وتعالی په خاص فضل او توفیق ددې څو کربنو لیکلو اراده کړې ، هغه د هندي مشرک ریاست په خرچ او کنجاره شخوند وهونکی د پاکستاني طالبانو وطنی تحریک دی چې د جهاد د شرعي مقدس نوم نه په ناوړه فایدې اخیستو سره د حقیقي جهاد وصف او حیثیت ورخرابوي : د دوی د ردّت ، بطلان او حماقت دپاره دا کافي ده چې دوی د مرتد افغاني طالبانو په کفري بیعت کې د شرک او ردت په ناولې رسۍ ځانونه د بین الملل په اخور د وطنی نظریې په طاغوتي پړو او موږو تړلي دي .

خو بیا هم چې بې علمه ساده او غولیدلي مسلمانان د دوی په ناوړه اهدافو او د اسلام او مسلمانانو سره په خیانت او په هغوی د تهمتونو او بهتانونو تړلو د جرم نه بنهٔ اګاه شي او د دوی د شر او خطر څخه نه تنها ځان وساتي بلکې د نورو مسلمانانو د تحفظ او ساتنې په پار د اسلامي دولت او خلافت اعزها الله تعالی د قیادت او طاعت لاندې د دوی په شمول د جمله کفارو او مرتدینو خلاف د جهاد في سبیل الله فریضې ته د عمل لباس ورواغوندي او د خپل رب دې وینا او فرمان ته لبیک ووایي چې فرمایي:

وَقَٰتِلُوا۟ ٱلْمُشْرِكِينَ كَآفَّةً كَمَا يُقَٰتِلُونَكُمْ كَآفَّةً وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُتَّقِينَ .

ژباړه : اوتاسې ټول أی مؤمنانو په یو اتفاق د مشرکانو سره وجنګیږئ ، لکه څنګه چې هغوی ټول یو ځای تاسې سره جنګیږي ، او ویوهیږئ چې الله د پرهیزګارانو مدد کونکی دی .

نو په دې اساس غواړو چې د دوی دا ناوړه او د خیانت ، دجل او شیطانت نه ډکه رساله چې نوم یې ورته دا ایښی :

**"د شیخ أبوبکر البغدادي حفظه الله له خوا د اعلان کړای شوي تش په نوم خلافت په اړه د پاکستاني طالبانو د تحریک شرعي دریځ "**

دا رساله چې د علمي خیانتونو او د حق سره د عداوت او تهمتونو او په هغې د بهتانو نو نه ډکه ده راواخلو او د الله عزوجل د کتاب او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم د سنت په رڼا کې ددې ردّ ذکر کړو ترڅو د دوی د بطلان او اسلام سره د عداوت سره د دوی ددې تش په نوم ملایانو او مفتیانو حقیقت او حیثیت هم په ډاګه شي وما توفیقنا الا بالله الحي القیوم .

## [په تحريکي مقدمه يو څو خبرې!]

کتاب ليکونکی مقدمه له دې ځايه شروع کوي او ليکي : جهاد د اسلام د حاکميت ، د اسلام د کلمې د لوړوالي او د مسلمانانو د عزت وروستۍ او يو اځينۍ لاره ده صـ 3 .

⟸ زمونږ تبصــره :

د ليکونکي دا خبره هم ددې مقولې بعينه مصداق دی چې " إن الكذوب قد يصدق "

ځکه چې دا ريښتيا ده چې جهاد داسلام د حاکميت او د مسلمانانو د عزت د حاصلولو لاره ده خو کاش دې هندوستاني تحريکيانو دغه جهاد پيژندلای وای!

او بيا يې که کولی نه ،نو کم از کم مخالفت او مخنيوی خو يې ورته نه کولی، ځکه چې اسلامي دولت او على منهاج النبوة خلافت د همدې جهاد اعلان کړی او عملي يې د شام او عراق نه تر توري قارې ، افريقې او د ساحل نه تر مصر، يمن او داسې تر هند او خراسانه د همدې جهاد ميدان او سنگرونه گرم کړي دي ،چې بغير له توپيره هر مسلمان خپل ورور گڼي او هر مسلمان ته د خلافت د امام او خليفه د طاعت لاندې د نرۍ د هر کافر او مرتد مقابل کې د قتال دعوت ورکوي ترڅو د ځمکې په مخ د هر مسلمان تللی او لوټ شوی عزت او مجد راواپس کړي او يو په سله يې پور له کفارو څخه واخلي او ددې بله هيڅ لاره نه شته مگر همدا چې ټول مسلمانان د يو امام په قيادت کې د يو بيرغ تر سيورې لاندې د يوکتاب او سنت په فضا کې راجمعه نه شي خو افسوس او د افسوس د پاسه افسوس چې د اسلام د نورو دښمنانو اصلي کفارو سره د مسلمانانو په درواغجن نوم او جامه کې ډير مرتدين ددې جهاد د مخنيوي او

بدنامۍ لپاره د کفارو سره اوږه په اوږه پدې میدان کې ودرېدل چې یو له هغې قبیلې څخه تاسې تحریک طالبان هم یاست چې د خلافت په دښمنۍ او په هغې د تهمتونو پورې کولو په سبب مو نړیوالو کفارو ته خپل ځانونه ورنزدې کړي او په همدې کوشش کې یاست چې لا به ورته نور څنګه نزدې شئ.

او څنګه به د بین الملل څخه د خپلوۍ او د هغوی د رضا میډال لاس ته راوړئ! نو چې څومره لوندوالی مو په ژبه کې وي او څومره رنګ مو په قلم کې وي دریغ نه کوئ، چې د بهتانونو او تهمتونو ګیډې او بارونه ودروئ علیکم من الله ماتستحقون .

ځکه هغه جهاد چې په هغې اسلام لوړیږي ، کونکی یې مجاهد بلل کیږي او مسلمانانو ته وربانديې عزت حاصلیږي ، نو هغه د وطن ، تیلو او اوبو لپاره نه وي !هغه د کابل او اسلام برباد د ګدۍ د حاصلولو لپاره نه وي ! هغه د قومي او وطني تعصب دپاره نه وي ، بلکې هغه خالص لله او فی الله د رب د دین د علو او حاکمیت لپاره وي رب په سُورَةُ الا٘نفَال 39 ایت کریمه کې فرمایي :

وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ.

ژباړه : اې مؤمنانو! تاسې له دې کافرانو سره تر هغه پورې وجنګیږئ چې فتنه ( شرک ، کفر او ردت ) غالب پاتې نه شي او ټول دین د الله لپاره شي نو که هغوی د فتنې څخه لاس واخسته نو د هغوی د عملونو لیدونکی الله دی .

نو دلته رب خپلو بنده ګانو ته د جهاد تعريف داسې کوي چې دا به د هر کافر او مرتد په مقابل کې کيږي، بيا برابره خبره ده دا کافر او مرتد وطني وي او که غير وطني خو تحريکيان د وطن نه بهر کفار نه خپل دښمنان ګڼي او نه ورته د دښمن په سترګه ګوري بلکې د هغوی سازمان ته وخت په وخت د ځان له خوا دا ضمانت ورکوي، چې زمونږ له تاسې سره هيڅ کار نه شته داچې د مسلمانانو د دوکه کولو لپاره ورته دوی د جهاد نوم ورکړی ،نو دا وطني جنګ يې صرف د خپل وطن پورې محدود کړی، نو د الله د کتاب څخه د کوم ايت او د رسول صلی الله عليه وسلم د احاديثو څخه د کوم حديث نه دا ثابتيږي چې د وطني نظريې د اشراف نه لاندې جنګ جهاد دی او دې باندې اسلام حاکميږي؟

او يا وربانديې الله او د هغه رسول امر او حکم کړی دی؟

بيا تحريکيان ليکي او وايي چې په جهاد عزت رامعاد کيږي ... .

### ⇐ زمونږ تبصره:

مونږ وايو په جهاد چې عزت معاد کيږي، نو هغه هاغه جهاد نه وي چې د وطنيت په نظريه ولاړ وي او نه پدې کې صرف د وطن د مسلمان د عزت فکر وي .

بلکې دا جهاد به هم د هر کافر خلاف وي او دا عزت به هم د هر مسلمان را معاد کيږي هغه وطني وي که غير وطني ،لکه څنګه چې جهاد سره د ټول اسلام حاکميت مراد دی

نو داسې يې عزت هم د ټولو مسلمانانو معادول هدف دی او همداسې جهاد د ټولو کفارو مقابل کې پکار دی .

خو حیران پدې یو چې تحریک طالبان والا ځنګه دا خبره کوي او په کومه خوله دا دعوه کوي ځکه دوی خو عالمي پرېږده بلکې خپل وطن کې هم جنګ د یو خاص نوع مرتدو خلاف شروع کړی ، او اوس خو یي تازه دا اعلامیه خپره کړې او د د پاکستان د لارې مکالې قانون ساتونکي مرتد پولیس یي هم د دښمنۍ له نوملړ څخه وویستل .

او هغوی ته هم مرتد نه وايي او کوم مرتد او کافر ته چې دښمن وايي هغه هم د مرتد او کافر په صفت نه، بلکې د وطن د شتمنۍ لوټونکي او د اسلام اباد د ګدۍ غاصب يې بولي او بل مرتد چې بیا دده نه يې کفر او ردت سخت او ناولی وي ،هغه ته ګلان غاړه کې اچوي او په امن او عزت لاره ورکوي .

یعنې دا جنګ دوی چرته ددې لپاره نه کوي چې هغوی مرتد دي او کفري نظام يې نافذ کړی او د الله د نظام مخه یې نیولې نو ګویا (تحریک طالبان هند) ورسره شرعي جهاد کوي ، بلکې د ملک او وطن د شتمنۍ لوټونکي او ظالمان ورته وايي ، بیا بل طرف د همدې فوج ملاتړ او تائید کونکی فضل الرحمن چې د مفتی محمود زوی دی او دېزلې باندې مشهور دی همدارنګه تقي عثماني چې د ردت ښکرونه او لکۍ يې شوې ده او د پاکستان د جمهوري سیکولر نظام کلک حامي دی، هغوی خپل رهبران هم ګڼي ځکه خو الله سبحانه وتعالی فرمايي : " ذلك بأنهم قوم لايعقلون"

نو مونږ په تاکید او تحقیق سره داخبره کوو او د الله د رالیږلي شریعت څخه یې کوو او پدې کې ټول صحابه ، تابعین ، امامان ، محدثین او جمله تیر شوي صالحین خپل سلف ګڼو چې د وطن په نظریه باندې ولاړ جنګ نه جهاد دی او نه د وطن مسلمان ته پدې عزت معاد کیږي ،که د تحریک کشران یې نمونه او مثال غواړي نو د افغاني طالب ملېشو جنګ ته وګوري یومسلمان راوښایې چی د هغه سینه یې په کافر یخه کړې وي او یا یې ورته د کافر نه پور اخیستی وي دا خو ډیرې غټې خبرې دي بلکې د وطني جنګ نتیجه همدا ده چې نن یوکافر د ځمکې په مخ نشته چې طالب ملیشې یې دښمن وګڼي او په خلاف یې جهاد ته دوام ورکړی وي!

همدغه حال د روس په خلاف د وطني جنګ نتیجه وه چې ترننه یې مسلمانانو ته تاوان او کفارو ته فایده رسیږي ، اګر که تحریکیانو دې رساله کې د روس خلاف وطني جنګ هم د اسلام د حاکمیت او د مسلمانانو د عزت معادولو دپاره په جهاد سره تعبیر کړی دی لا حول ولا قوة الا بالله .

" د تحريک طالبان د شورى علمي مبلغ "

بيا د رسالى ليکونکې بې علمه او د عقل نه خلاصه عَمَله د خپلې دعوى دپاره چې جهاد سره عزت معاد کيږي دليل داپيش کوي او ليکي نبي عليه الصلاة والسلام فرمايي لا عز الا بالجهاد 3 صـــ ،

محترمو لوستونکو!

داخبره د ډيرو نصوصو نه ثابته ده چې جهاد سره د مسلمانانو د دين حفاظت راځي لکه ددې ځخه بعضو خبرو ته مونږ مخکې اشاره وکړه او دين د مسلمان عزت دى او بغير له دين نه مسلمان د ذلت په دلدل کې ډوبيږي ، لکه صحيح حديث کې دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي : **سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقولإذا تبايعتم بالعينة وأخذتم أذناب البقر ، ورضيتم بالزرع ، وتركتم الجهاد ، سلط الله عليكم ذلا لا ينزعه حتى ترجعوا إلى دينكم.**

ژباړه : ما د الله د رسول صلى الله عليه وسلم ځخه اوريدلي چې که تاسې عينه کاروبار شروع کړ او د غواګانو لکۍ مو ونيولې ، په کښت او کرونديې راضي شوئ (دا مو کار وګرځاوه) او جهاد موپريښوده نو الله به پر تاسې داسې ذلت مسلط کړي چې بيا به درنه دا پورته نه کړي ترڅو تاسې خپل دين ته رجوع نه وي کړي . رواه ابوداوده فى سننه .

**في باب في النهي عن العينة.** رقم الحديث 3462

خو سوال دادی چې د تحریک د شوری عمله د الله نبي صلی الله علیه وسلم نه ددې حدیث اثبات د کوم ځایه کوي چې لیکي : نبي علیه الصلاة والسلام فرمايي " **لاعز الا بالجهاد** "

هغه چا رېښتيا ويلي چې د چرگ د مالگې د څټلو سره څه!

ايا د احاديثو په ذخيره کې داسې حديث شته؟

او که وي نو د صحت متعلق يې څوک ضمانت کولی شي؟

نو چې کله يوه خبره د الله د نبي صلی الله علیه وسلم څخه ثابته نه وي او هغه ته يې نسبت وشي نو دا درواغ نه دي؟

د تحریک په شوری واجب ده چې ددې حديث مصدر متعين کړي او د صحت او ضعف تحقيق يې وکړي ، دا څه معمولي خبره نه ده ځکه دا د الله په نبي صلی الله علیه وسلم باندې د درواغو ارتکاب دی او وعید یې ډېر سخت او دردونکی دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

« **من تعمد علي كذبا ، فليتبوأ مقعده من النار** »

ژباړه : چاچې په ما له ځان نه درواغ وويلې نو پس هغه دې خپل مسکن ځانته په اور کې جوړ کړي ، متفق عليه .

تحریک طالبان ته وایو چې په تاسې قرض شوه چې یاخو ددې سند او مصدر اعلان کړئ او یا پدې اعتراف وکړئ چې تاسې د الله په رسول صلی الله علیه وسلم باندې په درواغو ویلو کې حیا نه کوئ، نو په اسلامي دولت او خلافت اعزها الله ونصر جنودها او اذل أعداها باندې خو په دروغو او تهمتونو کې بیخي حیانه درځي!

"تحریکیان ریښتیا د جهاد د دوام معتقد دي؟"

ددې نه بعد تحریکي شورى لیکي : جهاد یو دایمي عبادت دى په هیڅ وخت کې نه

پرېښودل کیږي بلکې ترقیامته پورې به جاري وي! 3 صــــ .

⇐ **الجواب :**

مونږ بیامجبور یو چې ووایو چې إن الكذوب قد يصدق .

الحمدلله دا د خلافت د منهج د اهمو عقائدو څخه ده چې ترڅو د الله دین غالب شوی نه وي ،ترڅو کفارو او مشرکانو کفر او شرک پریښی نه وي ، او په الله او د الله په دین مؤمنان شوي نه وي ، دغه ډول ترڅو چې اهل کتابو مسلمانانو ته په ټیټ سر او ذلیله ځان جزیه نه وي ورکړې، ترڅو چې د ځمکې له مخ څخه د کفر ، شرک او ردت شعائر ختم شوي نه وي ، ترڅو چې یومسلمان هم د کفارو د تعذیب او ستم لاندې وي نو یوه ورځ هم د جهاد د تعطیل او توقف اعتقاد ردت ګڼو!

ځکه چې دا معنا د جهاد په تعریف کې پرته ده ، بې شمېره ایاتونه او احادیث پدې دلیل دي .

خو ځواب دادی چې جهاد څه ته وایي او څه تعریف لري آیا که تاسې تحریکیانو ته که د پاکستان د اسلام اباد ګدۍ او ریاست په لاس درشي ،نو بیا به هم تاسې د جهاد دوام ته معتقد پاتې شئ؟

ستاسې حال هم کټ مټ د هغه چانه کم نه دی چې تاسې يې د ناولي بيعت په دام کې لکه د کم عقلو مرغانو د پښو نه کلک ترړل شوي ياست ، ځکه هغوته هم چې کله د کابل گدی او دغه ناولی ارگ په لاس ورغی، نو نه صرف دا چې جهاد يې ترک کړ، بلکې هغه کفار او مرتدين چې په خلاف يې رب العالمين جهاد فرض عين گرځولی، دوی ورسره جهاد حرام او دوستي حلاله وگرځوله او ښکاره د الله د دين څخه په پوندو وگرځېدل چې په همدې اساس هغوی د نورو کفري او مرتدو دولتونو په څير د پاکستان مرتد لعين او کفري نظام خلاف هم په يو او بل صورت جهاد کول حرام وباله او خلاصه يې دا شوه ،چې د پاکستان د حکومت د لاسه ستاسې وژل شوي جنگيالي مجاهدين نه بلکې د شيطان او طاغوت په لاره کې وژل شوي بغات او نافرمان دي .

خو څوک به پدې خبرو فکر وکړي او څوک به فکر مند شي!

نو خلاصه همدا شوه چې تاسې د مسلمان ولس د دوکه کولو په پار او د هغوی نه په خپل طاغوتي جنگ کې د څه مفادو لاسته راوړو لپاره د بعضې شرعي نظريو اظهار کوئ ،خو په عمل کې په وينهٔ خو پـرېـږده چې خوب کې هم نزدې نه ورځئ دلته مو هم بعينه همداسې کړي د مياشتې په سر او اخر کې نړيوالو کفارو ته خپل ناولی سپيناوی او خيرنه صفايي په همدې کوئ، چې زمونږ جهادي اجنډا عالمي نه ده او نه هم د پاکستان نه بغير له بل چا سره کار لرو او پاکستان کې هم يهودي ، نصراني ، رافضي ، هر مرتد او کمونيسټ او آن پوليسو ته امن دی صرف فوځ سره مو کار دی او

په وینا مو که هغوی تاسې ته دا اقتدار حواله کړي نو هغوی مو هم دیني او عقیدوي ورونه دي هیڅ مشکل ورسره نلرئ.

نو څه که داسې وشي بیا به دا خبره څوک دریادوي چې تاسې خو دې رساله کې لیکلي وو چې جهاد یو دایمي عبادت دی ،په هیڅ وخت کې نه پرېښودل کیږي، بلکې ترقیامته پورې به جاري وي الجهاد ماض الی یوم القیامة!!!

" د تحريکيانو مخکني او اوسنۍ عقيده !! "

دا چې همېش باطل پرست او د تور منهج خاوندان په يوه خبره او وعده کلک نه دي پاتې شوي او د شيطاني سياست د خپلولو په اساس يې که نن يوه خبره کړې ،نو سبا بيا په بې حده سپين سترگۍ ددې برعکس خبره کوي ،نو همدا حال د تحريک طالبان پاکستان هم دی، دوی هم د خپل بادار افغاني طالب ملېشو غوندې مخکنۍ عقيده باندې نظر ثاني کړې، داسې چې مخکې پکې لږه لږه جهادي نظريه وه، چې د مخلصينو د دوکه کولو دپاره يې " زوراً وکذباً " د هغې مظاهره کوله خو اوس که د فيل زړه هم ورکړې او د زمري پوستکی هم ورواغوندې نو په خوله د هغې څخه يو حرف نه شي ويستلی مستقله جمله خو لرې خبره ده .

هسې د نمونې په طور ددوی مخکنۍ څو دعوې چې پرون دوی د " هم کون هيں؟" له عنوان لاندی اعلان کړې وې او نن يې په غلطۍ کې هم خواته نه ورځي د لوستونکو مخې ته عرض کول غواړو چې بعضې له هغې جملې څخه دا دي.

1. دولسم نمبر کې ليکي چې د امت د وحدت او د خلافت د قيام په خاطر مونږ په خپل تحريک کې هرمسلمان ته ځای ورکوو او د هر قسم مسلکي او لساني تعصباتو نه ځانونه لرې ساتو !!

## زمونږ ځواب :

خو افسوس چې نن بار بار بين الملل ته د دوی قيادت دا چاپلوسي کوي چې زمونږ نظريه عالمي نه ده، له پاکستان نه بهر چاسره کار نلرو او نه د پاکستان نه بهر چاته دې وطني جنگ کې د شرکت دعوت ورکوو!



**اقوام متحدہ کی حالیہ رپورٹ کے بارے میں**
**تحریک طالبان پاکستان کا اعلامیہ**

گزشتہ چند روز سے میڈیا پر اقوام متحدہ کی ایک رپورٹ گردش کر رہی ہے کہ گویا گزشتہ سال اگست کے مہینے میں پاکستانی مجاہدین کے درمیان ہونے والے اتحاد کی وجہ سے تحریک طالبان پاکستان خطے کیلئے خطرہ بن رہی ہے اور مزید یہ کہ اس اتحاد کو عالمی جہادی تنظیموں یا بیرونی ہتھکنڈوں کی کاوش بھی ثابت کیا جا رہا ہے ۔

ہم ان پر اولاً یہ واضح کرنا چاہتے ہیں کہ مجاہدین پاکستان کا یہ اتحاد صرف اور صرف پاکستانی مجاہدین کی مل جُل کر کوششوں کا نتیجہ ہے، اس میں نہ تو کسی دوسرے ملک نے کردار ادا کیا، نہ ہی عالمی تنظیموں کا اس سے کوئی واسطہ ہے اور نہ ہی تحریک طالبان پاکستان اپنے معاملات میں کسی کو دخل اندازی کی اجازت دیتی ہے ۔

دوسری اہم بات یہ ہے کہ ہم صرف اور صرف ریاست پاکستان کے غیر عادلانہ نظام اور غیراسلامی قوانین و پالیسیوں کے مخالف ہیں اور پاکستانی فوج اور آئی ایس آئی سے ہماری جنگ اسی بناء پر ہے ۔ ہم اس کے علاوہ کسی بھی بیرونی ملک کیلئے نہیں سوچ رہے بلکہ ہر ملک اور خطے میں اپنے اپنے مجاہدین برسرِپیکار ہیں ۔ تحریک طالبان پاکستان کے ساتھ جڑنے والی جماعتوں کا اتحاد سے قبل بھی یہی مؤقف رہا اور اس وقت ہمارا بھی یہی مؤقف تھا تو کیونکر اتحاد کے بعد اس مؤقف کو بدلا جائے؟۔

ہماری تمام جنگ میں پاکستان ہی کی زمین کا استعمال ہوا ہے اور اس میں کسی بھی بیرونی ملک نے ہماری مدد کی نہ ہم اس کے محتاج ہیں بلکہ یہ سب پاکستانی بھائیوں کے خلوص بھرے مالی مدد سے ہوتا آ رہا ہے ۔ ہم اس بارے میں تمام پروپیگنڈوں کی مکمل طور پر تردید کرتے ہیں ۔

پچھلے عشرے سے مختلف پاکستانی اقوام خصوصا بلوچ و پشتون پر جو ظلم کیے گئے، انہیں لاپتہ کیا گیا، ان کے گھر مسمار کیے گئے، بازار لوٹے گئے، انہیں ماورائے عدالت قتل کیا گیا اور ان سے گیس، پانی و بجلی سمیت مختلف حقوق چھینے گئے، یہ سب کسی سے نہیں چُھپنا چاہئے ۔ ہم اپنی قوموں کو ان کے حقوق دلانے اور ملک کے مقصدِ حصول کی جنگ لڑ رہے ہیں جو ہم اپنے مقاصد کے حصول تک لڑتے رہیں گے ۔ ان شاءاللہ ۔

محمد خراسانی ترجمان: تحریک طالبان پاکستان
پیر 26/جماد الثانی/1442ھ۔۔۔8/فروری/2021ء



https://t.me/umarmedia_bot
http://t.me/umarmediaarabic_bot
http://t.me/umarmediapashto_bot
https://t.me/umarmediaenglish_bot
http://t.me/umarmediapersian_bot
http://umarmedia.org
ttpspokesman.official@gmail.com

لوستونکي دې عموماً او د تحريک کشران دې خصوصاً غور وکړي ،دلته يې د خلافت اسلامي دعوه وګورئ او اوس چې د خلافت اعلان وشو نو د خلافت د قيام دښمني اول دوی وکړه!

دا مرض خو د يهودو و، چې رب يې مذمت په سورة البقرة 89 نمبر ايت کې داسې بيانوي : وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتَٰبٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ وَكَانُوا مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَمَّا جَآءَهُم مَّا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِۦ ۚ فَلَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْكَٰفِرِينَ .

ژباړه : اوکله چې راغی دوی ته کتاب د الله له لورې ( نو دوی یې مخالفت کوي)  سره له دې چې دا کتاب د هغه کتاب تصدیق کوونکی دی چې له پخوا څخه له دوی سره موجود و ، سره له دې چې ددې کتاب له راتګ څخه مخکې دوی په خپله د کفارو په مقابله کې د برې او مرستې دعاګانې کولې؛ خو کله چې هغه کتاب راغی نبهٔ یې وپېژانده چې دا حق کتاب دی نو د هغه له منلو یې انکار وکړ ، نو د الله لعنت دې وي په منکرینو د حق!

دغه ډول د تحریکیانو خپل صف طرف ته د  مسلمانانو د بلنې او دعوت دعوې هم درواغ ثابت شوې ځکه نړۍ مشاهده کړه چې بار بار یې د قیادت له لورې رسمي ورقې شایع شوې ،چې افغانانو ته به په خپلو صفوفو کې ځای نه ورکوي نو د نورو لرې ملکونو مسلمانان خو لرې خبره ده .

ځوک شته چې د تحریکیانو نه پوښتنه وکړي چې اول مو څه ویل او اوس څه کوئ؟

نن که اسلامي خلافت د نړۍ مسلمانانو ته ځای ورکوي او هغوی د خلیفه په موجودګۍ یوصف او یو قیادت ته رابولي نو دا خوارج او دا کار یې په شرعي سیاست کې ناپوهي ده!!  خو تاسې چې نه مو خلافت اعلان کړی و او نه درکې  کوم صحیح العقیده مشر موجود و ،چې د ولا او براء په اصولو کلک ولاړ وای او د خپلو ماتحتو صحیح رهبري یې کړې وای، نو چې تاسې دغه وخت د نړۍ مسلمانان خپل صف ته دعوت کول دا کار مو ستر سیاست و، خو چې خلافت اسلامي یې کوي نو دا ناپوهي ده د تحریکیانو سره

لکه د  شعیب علیه السلام د قوم په خېر عجیبه تله ده اخیستل په یو کاڼي کوي او خرخول په بل!

2.    په څوارلسم نمبر باندې لیکي!

مونږ د الله د نازل کړده قانون په مقابل کې متبادل نظام ، خود ساخته قوانین جوړول او یا پدې کې هرقسم ترمیم کول او د غیرالله قانون ته د الله په قانون ترجیح ورکول غیر اسلامي کار او کفر ګڼو ..!!

الله اکبر! خو نن تحریکیان ددې هرڅه باوجود د افغاني طالب ملېشو په بیعت کې داخل او شامل دي!! سره ددې چې هغوی ظاهرشاهي نظام ته په اسلامي نظام ترجیح ورکړې او تولې فیصلې د قضاء یې غیر شرعي ، بلکې د شرعي حدودو په تبدیل باندې بناء شیطاني فیصلې دي ،خو تاسې ورته نه کفر او نه یې کونکو ته کافر وایې؟

دغـه ډول نن تحریکیان د پاکستان نظام ته هم کافر نظام نه وایې!!

۱. سره له دې چې ښکاره پکې په غیر ما انزل الله باندې فیصلې کیږي .

۲.  جهاد حرام ګڼي .

۳. د بین المللي قوانینو احترام ته قائل دي .

۴. شرعي حدود یې د توري او ټوپک په زور بند کړي دي .

۵. نارینه د ښځې او ښځینه د نر جنس اختیارول یې حلال ګرځولي دي .

٦. سود ، سودي کاروبار او تجارتونه حلال ګڼي .

٧. نر د نر او ښځه د ښځې سره نکاح کول يې حلال ګرځولي دي .

٨. د مؤمنو مجاهدينو وينه مباح او مال يې حلال ګڼي .

٩. يهوديت ، نصرانيت ، رافضيت ، قاديانيت وغيره شرکي او کفري اديانو ته يې اجازت ورکړې دی .

١٠ . د يادو اديانو پيروانو ته د احترام او تحفظ قانون يې پاس کړی دی .

خو عجيب جهاد او اسلام مو دی چې نن نه د پاکستان نظام ته کفر وايي او نـه ددې نظام نافذونکي اداري (فوج ، ملاترو بلاعمه وو فرقو او د همدغه جمهوريت غوښتونکو تنظيمونو ) ته کافر وايې؟ خو پرون مو دا چغې وهلې چې مونږ د الله د نازل کرده قانون په مقابل کې متبادل نظام ، خودساخته قوانين جوړول او يا پدې کې هرقسم ترميم کول او د غيرالله قانون ته د الله په قانون ترجيح ورکول غير اسلامي کار او کفر ګڼو!

همدا حال مو د ځمکې په مخ د جمله مرتدو سره دې نن وګورئ لکه د افغاني طالب ملېشو تاسې هم د نړۍ په اسلامي خاوره باندې حاکمو مرتدو طاغوتي نظامونو ته کافر نه وايې!

سره ددې چې هغوی هم لکه د پاکستان د حکومت د غیر ما انزل الله نظامونه نافذ کړېدي او د الله په قانون يې ترجيح ورکړېده ،چې دليل وربانديې د هغوی له خپل نظام څخه مسلحه دفاع کول دي ، چې د شريعت له مخې ورته طوايف ممتنعه ويل کيږي .

نن مونږ تحريکيانو ته پيغور ورکو چې ولې يو نر په تاسې کې نشته چې د څمکې په مخ د بين الملل په دين او شريعت ايمان لرونکي دغـه مرتد حکومتونه تکفير کړي؟

ولې تاسې د جمهوريت سالار فضل الرحمن ډيزلي او تقي عثماني اوس هم مسلمانان او حتی خپل رهنما او رهبران گڼئ ؟ سره له دې چې بار بار يې د پاکستان د جمهوري نظام او ددې نظام د جمله عمليې دفاع او د هغوی په خلاف يې ستاسې په هغه محنت چې تاسې يې تعبير په جهاد کوئ بې دريغه خاورې واړولې ، هغوی يې شهيدان او ستاسې مړي يې په مردارانو تعبير کړل، او په علني شکل د جمهوري کفري نظام د راوستلو اعترافات کوي او په شرکي ټاکنو کې گډون کوي ؟

خو نه پوهيږم چې تاسې ولې د ايماني غيرت نه داسې محروم او بې برخې وگرځېدئ چې په خلاف يې يو چونگ هم د خولې نه نشي ويستلی!

نو تحريکيانو ته وايو تاسې له دې عقيدې څخه رجوع کړې او که نه ستاسې په صف کې ددې عقيدې او نظريې لرونکو د مرگ سره دې عقيدې ته هم مرگ راغلی دی؟

ځکه نن دا عقيده صرف د اسلامي خلافت نه بلکې د خوارجو عقيده ګڼۀ او ددې نه سحر او ماښام د براءت تکرار او ګواهي د ملل ملحده په کفري چوپړ کې پېش کوئ لاحول ولا قوة الا بالله .

3. په شپاړلسم نمبر عقيده کې د کفارو سره د دوستۍ د حرمت متعلق د انورشاه کشميري د عبارت معنا کوي او ليکي : چاچې د غلام احمد قادياني دفاع وکړه او د هغه خبره کې يې تأويل وکړ نو دا قطعي کافر دی ، دې خبره کې هيڅ کمزوري نشته او دا خبره صرف د غلام احمد قادياني باره کې نه ده بلکې هرڅوک چې د کافر ، د هغه د نظام او د هغه د قانون دفاع وکړي دغه (حکم د تکفير) هغه ته هم شامل دی!!

⇐ زمونږ ځواب :

لوستونکو لرې نه ځو له همدې تحريکيانو څخه پوښتنه کوو چې ستاسې ددې عقيدې له رويه خو د نړيوال سازمان د امن مطالبه کونکي او د هغې د امن او سلامتيا خواهش او دفاع کونکي ټول کافر شو خو اوس سوال دادی چې د امارت افغاني باره کې مو څه فکر دی دا خو د اسلامي خلافت په مقابل کې د روس ، امريکې ، چين ، پاکستان او حتی د هر کافر نه دفاع ته قائل او معتقد نه ، بلکې عملي فاعل دی او تاسې يې د سيکهانو ، روافضو ، روسانو ، چينايانو او نورو انواعو مشرکانو په دفاع کې د مجاهدينو د لاسه ناولې قربانۍ هم وليدې نو افغاني طالبان هم ستاسې ددې فتوی له رويه کافر دی که نه؟

نو که تاسې د دوی تکفير ته قائل يئ او ستاسې د فتوی لاندې راځي نو بيا چې تاسې د دوی حمايت او ملاتړ کوئ، بلکې په بيعت کې يې د پاتې کېدو برملا اعتراف کوئ نو ځان باره کې مو څه فکر دی؟

ستاسې ژبه څو سرونه او څو څوکې لري؟ خپله وايې چې د کفارو سره دوستي ، د هغوی دفاع او د هغوی د نظامونو دفاع کفر او کونکي يې کافر دي ، خو چې دغه فتوی بيا اسلامي دولت او خلافت جاري کوي نو بيا دې پريکړې ته تاسې د ټولو نه مخکې دخوارجو او تند نظرو پريکړه وايې عجيب منطق دی بائکم تجر وبائي لاتجر .

4. په اتلسم نمبر کې بيا ددې اعتقاد وضاحت کوي ليکي : مونږ د اسلام او اسلامي خلافت نه بغير هرعزم دا کفر ګڼو!

⇐ **زمونږ ځواب :**

سبحان الله نن تحريکيان ولې ددې عقيدې نه په بل مخ په پوندو وګرځېدل؟

نن د عالمي اجنډا دعوی ولې نه کوي؟

نن ولې د خلافت د نوم نه هم کرکه کوي عملي اقدام خو يې يو طرف ته پرېږده!

آيا د تحريکيانو کشرانو دا سوچ کړی دوی چې جنګ کوي دا د اسلام په خاطر کوي ، دا د خلافت د قيام په خاطر کوي؟

لړ که فکرمند شي او دا فکر په اخلاص او انابت سره وکړي نو زر دی چې رب يې زړه او دماغ په دې منشرح کړي ،چې همدا دعوی پرون افغاني طالب ملېشو هم کوله خو څلورم کال يې شروع دی ، چې په ټول افغانستان تسلط لري او د رب د رالېږلي اسلام يو فيصد يې هم عملي نه کړ ، نه د خلافت د قيام ، د امت په غم او درد غمجن او درد مند شول ،بلکې ښکاره کېسه يې هرڅوکويني چې د کعبې پرځای يې ترکستان طرف روانه کړې ده ، خو بلخوا بيا انسان حيران شي چې څنګه ، ولې او څه وجه ده چې کله اسلامي خلافت دا عقيده ښکاره کوي ،نو تاسې يې خوارج ګڼئ خو چې تاسې کې ددې عقيدې مظاهره کيږي نو هيچ ګپ نيست؟!

5. بيا په نولسم نمبر باندې ددې اعتقاد اظهار کوي ليکي چې : مونږ سيکولر او جمهوری نظام کفر ګڼو ....

⟸ زمونږ ځواب:

دا هم د تحريک مړه شوې او قتل شوې نظريه ده نن پکې په دوربين او خوردبين باندې هم څوک يوکس نه شي پيداکولی چې دا عقيده او نظريه دې ولري .

ګني لرې مه ځئ لاړشئ د طارق جميل ، سميع الحق ، فضل الرحمن ډيزلي ، مفتی محمود او تقي عثماني بلکې د اکوړې او ديوبند مدرسو د سيکولر او جمهوريت متعلق د عقيدې جايزه واخلئ او بيا د هغوی متعلق د تحريک د مشرانو او کشرانو عقيده وګورئ خپله به ومنئ چې دلته هم د بوسو لاندې د اوبو تېرولو کوشش شوی دی .

ملا ډيزل او گوند يي په ښکاره ناري وهي چې موږ جمهوريت غواړو موږ په کفري جمهوريت ايمان لرو خو دوی د همدغه جمهوريت غوښتونکي تنظيم په شرکي ټاکنيز کمپاين د اسلامي دولت د مجاهدينو بريد غندي ، همدا راز يي د پښتون ژغورني په نوم د يو سيکولر ، قومپرست او جمهوريت غوښتونکي غورځنگ ښکاره د ملاتړ اعلاميې خپرې کړې ، د افسوس دپاسه افسوس بيا دا چې که خلافت اسلامي ددې عقيدې اعلان کوي نو دا خارجيت دی خو که تحرکيان يې اعلانوي نو بيا دين او شريعت دی!

6. بيا يوويشتمه عقيده داسې بيانوي : مونږ د مسلمانانو خاوره د يو کور په شان تسليموو، موږ د کفارو پشان د ژبې او قوميت په بناء د اسلامي خاورې تقسيم ته قايل نه يو .

## ⟸ زمونږ ځواب :

مونږ دا وايو چې ليکل يوه خبره ده او عملي کول بله خبره، ډير ځلې خلک ليکل وکړي خو که بيا ترې تشه مطالبه ددې ليک د لوستلو وکړې نو هغه هم نه شي کولی عملي کول خو يې لويه خبره ده ،گني هر عقل لرونکی دې خپله فکر وکړي ايا تحريکيانو د پاکستان دغه وضعي نقشه د خپل وطن په نوم نه ده منلې؟ ايا دا د کفري قانون له مخه د اسلامي خاورې د ويش منل او تسليمول نه دي؟ ايا د تحريکيانو دا برملا چغې چې مونږ فقط د وطن عزيز دفاع کوو او بهرنۍ اجنډا نلرو دا د اسلامي خاورې د ويش منل او تسليمول نه دي؟

نودلته دې مسلمانان عام او د تحريک کشران خاص وګوري چې دا د تحريکي فرقې په طاغوت ايمان راوړل او په الله کفر کول دي او که نه؟

دلته بيا دا خبره کوو چې د دوی دوه مخي وګورئ!

د دوی ترمنځه دا اعلان چې د مسلمانانو خاوره د يو کور په شان تسليموو... " موږ د کفارو پشان د ژبې او قوميت په بناء د اسلامي خاورې تقسيم ته قايل نه يو "

دا مخکې جايز ، شرعي عقيده او ديني ضرورت ګڼل کېده خو چې نن خلافت ددې عقيدې او نظريې اعلان او اظهار کوي بيانو د خوارجو عقيده او نظريه ده .

7. بيا په دوويشتم نمبر ددې عقيدې اظهار کوي ليکي : د اقوام متحده او د هغوی له قوانينو څخه انکار کوو ، دا طاغوت اکبر او د کفـر امام ګڼوچې په هرمسلمان يې انکار کول فرض ګڼو .

⟸ **زمونږ ځواب :**

کاش نن د تحريکيانو مشران او کشران په دې معتقد پاتې وی او لکه د ژمي د ماذيګر داسې ژر له دې څخه انکار ته نه وای ستانه شوي، نن همدا تحريک دی لکه د طالب مليشو د مياشتې په سر او په اخر کې د اقوام متحده کلیمه تازه کوي کله ورته د اسلامي خلافت سره د دښمنۍ په ښکاره کولو خپل ځان ور نزدې کوي او کله ورته د وطنيت د شعار زمزمې وراوروي ، ملل ملحده ته د تي تي پي د سپيناوي اعلاميې له هيچا پټې نه دي .

نن يې دغه ټولې عقيدې شاته غورځولې نه خو په خپله اقوام متحده طاغوت اکبر او د کفر امام ګڼي او نه په بل دا واجب ګڼي چې اقوام متحده ته طاغوت او د کفر امام ووايي بلکې دوی خو اوس اقوام متحده د يو مستقل معبود په صفت منلی او د هغه چا په بيعت کې دي چې له همدې اقوام متحده څخه په رسميت غوښتو يې خولې تر اوښکو خېږې شوې او په اقوام متحده کې چوکۍ پسې يې جبې شوه ، او د دې هر څه سره دوی همدې اقوام متحده ته هر وخت خپله وطني اجنډا وړاندې کوي او دا شين چراغ يې هر وخت ورته روښانه نيولی وي چې که د پاکستان له مرتد فوځ څخه مو واک واخيست او دوی ته مو ورکړ نو دوی به هم په ورين تندي د اقوام متحده ټول کفري اصول ومني .

اللهم انانعوذبک من هذه الردة الصريحة

ځـکه د بين الملل رضا او د هغوی نظر دې تحريکيانو ته لکه د افغاني ملېشو نن لوی عزت ښکاري نو د همدې ناولي منصب او ګنده عزت په پار نن تحريک طالبان په خپل وطن عزيز  پاکستان کې د جمله أقليتونو تقدس او احترام ته قائل دي .

تاسې به چرته نه وي اوريدلي چې دوی کوم عيسوي ياني يهودي يا رافضي او قادياني په دې جرم وژلي وي، بلکې د هغوی سره هيڅ قسم جنګ ته تيار نه دي او نه د هغوی خلاف جنګ جايز ګڼي لنډ او نږدې شاهد يې د ۱۷ د ذولحجې د ۲۴ موافق د ۲۰۲۴ کال هغه اعلاميه  ده چې دوی په ډېره اسماعيل خان کې د يو رافضي دنيولو نه بعد د

هغې په بېرته روغ رمټ خوشې کولو سره شايع کړه او اعلان يې وکړ چې "ہماری کسی مذہبی طبقے سے کسی بھی قسم کی بھی کوئی جنگ نہیں ہے ہماری جنگ پاکستان پر مسلط سکیورٹی اداروں اور انکے آلہ کاروں کے خلاف ہے"

د تحريکيانو دا ډؤل اعلامیې د اسلام له مقدس دين څخه ښکاره مخالفت او د هغې ضد دي دا ښکاره په دې د دوی رضايت ځرګندوي چې دوی د پاکستان په خاوره د هر بې دينه مسلک مجوزين او هغې ته امن ورکونکي دي ، يواځې د هغه چا مخالفت کوي چې هغه د اسلام برباد چوکۍ د پښو لاندې کړي که دا ورته ميلاو شي نو لکه د افغاني طالبانو دوی هم اماده دي چې سيکانو ته درمسالونه ، روافضو ته تکيه خانې او صوفيانو ته شرکي مزارات تعمير او د غيرالله د عبادت امنيت ورته برابر کړي .

خو د تحريک کشرانو ته بيا لږ ددوی د پخواني قتل شوي رسمي دريځ نه چې " هم کون هیں " د دوی پنځم اعتقاد ورپه ګوته کوو چې ليکي :

8. شيخينو او نورو صحابه کرامو ته کنځل کونکي او لعنت ويونکي او هاغو صحابه وو ته چې صحابيت يې په تواتر ثابت دی کافر ويونکي د اسلام د دايرې نه خارج او کافر ګڼو!

خو بس تحريکي کشران که له خپلو مشرانو څخه پوښتنه وکړي چې دا څه وو او دا اوس څه دي نو ځواب همدا دی چې يو ځل خو ګدۍ لاندې کړو حکومت ونيسو ته

بیا ګوره چې مونږ ددې اقلیتونو سره څه کوو دا زمونږ سیاست دی اوس مجبور یو او دا جایز دي فلاني پیر صیب ویلي او فلاني فقیر صیب ویلي!

خو مونږ د تحریک کشرانو ته وایو د اقلیتونو خلاف اقدام او شرعي حقیقي جهاد کول د توحید سپیڅلي عقیده او قراني منهج غواړي چې دا به تاسې ته صرف او داسلامي دولت او خلافت په صف کې په لاس درځي .

د وطنیت په نظریه ولاړ جنګ نه جهاد دی او نه به د کوم کافر پوزه وینې کړئ، ګني لرې مه ځئ تاسې ته چې کومې دوزې نن مشران ولي دا دوزې پرون افغاني طالب ملېشو ته هم د هغوی مشرانو ویشتلې، نو دا دی د کابل نیږدې ګدی یې څلور کاله کیږي چې خپله کړې خو زیات یې نه شو مګر د مخکې په نسبت یې کفر او ردت زیات شو انا لله وانا الیه راجعون .

بیا وریسې تحریکیان لیکي :

همدغه راز د دښمنانو ځانته کمول او د خپل وس او طاقت مطابق وار کول دا هم د نبي علیه السلام د نبوي سیاست مهمه برخه وه 5 صـــ .

د نورو خبرو خلاصه یې داده چې ګوره بیت الله له بتانو څخه ډک و، خو نه د الله نبي صلی الله علیه وسلم او نه صحابه وو دغه بوتان مات کړل که بالفرض داسې یې کړي وی نو ټول عرب به یې مقابل کې راپورته شوي وو لیکن د الله نبي صلی الله علیه وسلم

ژوندي طواغيت هدف وگرځول او بوتان يې ختم نه کړل ترڅو يې پوره مکه باندې کنټرول حاصل نه کړ چې دايې ماحصل د خبرې دی!!

### ⟸ راځو د دې شبهې ځواب ته :

دلته هم تحريکي شورى په يو تير(غشي) د څو ښکارونو کولو کوشش کړی خو لله الحمد ناکام شوي .

څکه د دوی مقصد له دې خبرې څخه دادی چې يو خو د يو جانب کفارو سره بايد اوربند وشي او ښهٔ تعلقات ورسره وي او بل جانب سره جنگ وي هغه هم صرف د ژوندو مقابل کې .

دويم داچې مشکل نه شته که يوه علاقه تاسره په واک او اختيارکې وي او هلته دې بو تان او يا هم شرکي مواضع او اثار ولاړ پاتي وي دهغې ختمول دا نبوي سياست نه دی دريم داچې خلافت على منهاج النبوه چې شام او عراق کې د مشرکانو بوتان او شرکي مزارات ونړول نو دايې د نبوي منهج خلاف کار وکړ څکه چې روافض يې علني مخالفت کې ودرېدل چې دا يوه تيزي او په شرعي سياست ناپوهي وه چې دا يې حاصل د خبرې دی چې د 5 صـــ نه يې تر 6 صـ پورې ليکلي .

اوس بتوفيق الله تعالى ددې هر استدلال ردّ يې هم ولولئ :

د الله نبي صلى الله عليه وسلم دښمن ځان ته کم کړی دا خبره په دې الفاظو قطعاً صحيح نه ده بلکې د دښمن جنگ کمول دا صحيح تعبير دی ، بل ددې بيا هم دا مقصود

نه دی چې ته د الله په دښمنانو کې د يو جانب سره ډيپلوماتيک تعلقات او دوستانه رويه کوه او بل سره جنګ کوه دا کار قطعاً د الله نبي صلی الله عليه وسلم ندی کړی بلکې دا کار خو په کتاب ، سنت او اجماع دامت کې کفر دی ، نو نن ستاسې ددې استنباط چې دشمن کمول نبوي سياست دی همدا تاوان رامنځ ته کړی چې د يوکافر سره که جنګ کوئ نو د نورو لسو حربي کفارو ته مو د دوستۍ او د ورولۍ لاسونه ورکړي وي .

نه مو ولاء معلومه ده او نه د براء اصول پېژنئ اوبيا چې د کوم کافر سره په جنګ بوخت ياست کاش هغه ته هم د کافر په نوم خطاب خو وکړئ.

ستاسې د دې قسم استنباطاتو نه نن ستاسې کشران هم ستاسې د کفارو سره دوستي او په طاغوت ايمان راوړلو ته د نبوي سياست نوم ورکوي انا لله وانا اليه راجعون!

ستاسې دا استدلال چې بيت الله د بوتانو ځخه ډک و، يو هم د الله نبي صلی الله وسلم مات نه کړ او نه دا کار صحابه وو وکړ ، ددې شبهې نه دا څو ځوابه لرو:

1. ځواب دادی چې دا استدلال د مکې ځخه دی دغه دورکې چې څنګه د الله نبي صلی الله عليه وسلم او د هغه ملګرو بوتان ندي مات کړي ، نو دغه دور کې د هغوی نه څوک د کوم ژوندي کافر او طاغوت خلاف هم د قتل او قتال کوم ثبوت څوک نشي پېش کولی!

نو دا بیا کوم انصاف دی چې د شریعت نه صرف د خوښې او خواهش موافق استنباط کیږي او د خواهش خلاف بیا هغې ته خواته هم نه ورځي .

2. ځواب دادی چې که بوتان نه وو مات شوي نو دغـه وخت امر د الله نه وو راغلی نو ځکه ندي مات شوي ځکه چې لا دغه وخت د الله نبي صلی الله علیه وسلم ته صرف په دعوت ، صبر او اعراض باندې امر وو نه په قتال او جهاد نو په تاسې دا فرض او قرض شوه چې اوس دا ثابته کړئ چې کله مدینې ته په هجرت امر وشو او د قتال قانون او فرمان نازل شو بیا دې د الله نبي صلی الله علیه وسلم په کافر کې فرق کړی وي او یا دې هغه په مدینه کې ولاړ بوت پریښی وي!

3. ځواب د مدینې اوسیدونکي صحابه (اوس او خزرج) هم پیدایشي موحدین نه وو د اسلام نه مخکې دا هم کلک بوت پرست وو د اسلام د قبلولو سره سم دوی خپل بوتان مات کړل چې دغه وخت لا مکه هم نه وه فتحه شوې امام بیهقي په دلایل النبوة 432/3 کې لیکلي چې کله مصعب بن عمیر رض بطور معلم د الله رسول صلی الله علیه وسلم مدینې ته واستاوه او هغوی ته یې دین او عبادت وروښوده تر دې چې د مدینې والاوو اسلام زده کړ او ټولو بیا خپل بوتان مات مات کړل بیهقي فرمایي :

**حتی قل دار من دور الأنصار إلا قد أسلم أشرافها وأسلم عمرو بن الجموح وكسرت أصنامهم ، وكان المسلمون أعز أهل المدينة .**

ژباړه : تردې چې پاتې نه شو یو کور په کورونو د مدینه کې مګر دا چې د هغوی سرکرده او مخورو اسلام راوړ او عمرو بن الجموح هم اسلام راوړ او انصارو خپل بوتان مات کړل او مسلمانان د مدینې د ډېرعزت والا وو .

نو وګورئ دلته لا د الله نبي صلی الله علیه وسلم هجرت کړی هم نه دی ،فتحه هم نه ده راغلې، او بیا هم په مدینه کې بوتان مات رامات شوي، ولې عربو صرف د مکې بوتان خپل معبودان ګڼل د مدینې هغه یې نه ګڼل په هغې نه راپورته کېدل؟

نو اوس د تحریک شورى ته څوک ووایي چې تاسې خو وایې چې بوتانو ته لاس هم نه دی ور وړل شوی، دلته خو د فتحې نه مخکې په مدینه کې بو تان مات شوي دا ولې؟ ایا دا تیزي وه ایا دا سیاست کې ناپوهي وه؟ والعیاذ بالله تعالی .

4. ځواب دادی چې مطلق انکار کول له دې نه چې په مکـه کې بوتان نه دي مات شوي دا دعوه هم په جهل او د احادیثو نه په لرې بې علمی باندې دلیل دی ،ځکه مکې دور کې هم د الله نبي صلی الله علیه وسلم بوت مات کړی لکه په مستدرک د حاکم او په مسند د ابویعلي او په الاحادیث المختارة کې د علی رض عنه حدیث موجود دی .

د مستدرک حاکم الفاظ دا دي : أبو مریم تابعي فرمایي علي بن أبي طالب رضي الله عنه ، وفرمایل :

انطلق بي رسول الله صلى الله عليه وسلم حتى أتى بي الكعبة فقال لي: «اجلس» فجلست إلى جنب الكعبة فصعد رسول الله صلى الله عليه وسلم بمنكبي، ثم قال لي : «انهض» فنهضت فلما رأى ضعفي تحته قال لي : «اجلس» فنزلت وجلست ثم قال لي : «يا علي اصعد على منكبي» فصعدت على منكبيه ، ثم نهض بي رسول الله صلى الله عليه وسلم ، فلما نهض بي خيل إلي لو شئت نلت أفق السماء فصعدت فوق الكعبة وتنحى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال لي : «ألق صنمهم الأكبر صنم قريش» وكان من نحاس موتدا بأوتاد من حديد إلى الأرض ، فقال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم : «عالجه» ورسول الله صلى الله عليه وسلم يقول لي : إيه إيه {جاء الحق وزهق الباطل إن الباطل كان زهوقا} الإسراء : فلم أزل أعالجه حتى استمكنت منه فقال اقذفه فقذفته فتكسر وترديت من فوق الكعبة ، فانطلقت أنا والنبي صلى الله عليه وسلم نسعى وخشينا أن يرانا أحد من قريش وغيرهم ، قال علي : فما صعد به حتى الساعة .

زه د الله رسول صلى الله عليه وسلم د ځان سره  بوتلم تر دي چي کعبي ته يې راوستم نو ماته يې وفرمايل کښېنه نو زه د کعبي ګوډ ته کښېناستم د الله رسول صلى الله عليه وسلم زما په اوږو پورته شو بيا يې راته وفرمايل کښېنه نو کښېناستم ځکه چي هغه زما ضعف دپاسه وليده نو بيا يې راته وفرمايل اى علي ته زما په اوږو پورته  شه ،نو زه د هغه په اوږو پورته شوم نو بيا د الله رسول صلى الله عليه وسلم  ودريده نو چي کله

ودرېده فکر مې وکړ که د اسمان څوکو ته ورسم نو رسېږم نو په کعبه پورته شوم او د الله رسول صلى الله عليه وسلم اخوا شو نو راته ويې فرمايل راوغورځوه دې کې غټ بوت د قریشو چې دا د تانبې نه جوړ وو او د اوسپنې په موږو ترل شوی و. لاندې ترځمکې پورې نو د الله رسول صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل چې ولټوه او د الله رسول صلى الله عليه وسلم فرمايل ولټوه ولټوه بيا يې وفرمايل **{جاء الحق وزهق الباطل إن الباطل كان زهوقا}**

نو لټولو مې تر دې چې پيدا مې کړ نو راته ويې فرمايل راويې غورځوه ، نو راومې غورځاوه مات شو نو راکوز شوم د کعبې د سر نه ،نو زه او نبي صلى الله عليه وسلم تېز لاړو او يرېدو له دې نه چې څوک مو ونه ويني د قریشو څخه علي رض وفرمايل بيا د کعبې دپاسه ترننه دا بوت کېښنبودل شو .

ددې حديث تحقيق :

دا حديث مستدرک حاکم کې په رقم الحديث ٣٣٨٧ باندې موجود دی ددې نه بغير په الاحاديث المختارة کې په رقم 709 باندې موجود دی چې محقق يې ورته اسناده حسن ليکلې مسند أبي يعلي کې په 292 باندې موجود دی او په مصنف بن ابي شيبة کې د شبابة بن سوار نه مصنف راوستی چې دلته بيا سند نور هم قوي شوی .

دی حديث ته خپله امام حاکم صحيح الاسناد ويلې دې د سند د يو يو راوی تحقيق ديوان الرجال څخه پيش خدمت دی.

د مصنف شيخ احمد بن كامل بن شجرة البغدادي دی دحديثو حافظ دی ،په لسان الميزان کې حافظ فرمايي :

**"أحمد" بن كامل بن شجرة القاضي البغدادي الحافظ لينه الدارقطني وقال كان متساهلا ومشاه غيره وكان من أوعية العلم وكان معتمدا على حفظه فيهم انتهى**

قال الخطيب يكنى أبا بكر كان من العلماء بأيام الناس والأحكام وعلوم القرآن والنحو والشعر وتواريخ أصحاب الحديث قال ابن زرقويه لم تر عيناي مثله دا بيا

روايت عبدالله بن روح نه کوي ابن حبان ثقاتو کې ذکر کړی

ذهبي په ميزان لاعتدال کې فرمايي قال عبد الله بن روح المدايني الصدوق :

امام حاکم په سوالات دار قطني کې فرمايي ما د امام دارقطني نه دده متعلق تپوس وکړ نو ويي فرمايل : عبد الله بن روح المدايني ليس به بأس

او سلمي فرمايي : وسألته عن عبدالله بن روح المدايني .فقال : ثقة .

دابيا روايت د شبابة بن سوار نه کوي ثقه دی عجلي فرمايي شبابة بن سوار الفزاري ، يكنى : أبا عمرو ، من أهل المدائن ، ثقة وكان يرى الإرجاء .

خو لسان الميزان کې حافظ فرمايي : وقال أبو زرعة : رجع شبابة عن الارجاء .

دا بيا روايت د نعيم بن حکيم نه کوي.

عجلي فرمايي : نعيم بن حكيم ثقة ، من أهل المدائن .

حافظ تقريب کې ورته صدوق ويلي دي ، ابن حبان ثقاتو کې ذکر کړی .

ذهبي فرمايي: نعيم بن حكيم المدايني عن أبي مريم الثقفي وعنه القطان وشبابة ثقة مات 148 .

دا بيا د أبومريم نه روايت کوي تابعي دی ثقه دی عجلي فرمايي :

عبد الله بن زياد ، أبو مريم الأسدي الكوفي " كوفي" تابعي ، ثقة او دا بيا د علي رضي الله عنه نه روايت کوي .

نو ددې تحقيق نه همدا ثابتيږي چې دا حديث حسن لذاته حديث دی او قابل د احتجاج دی پدې باب کې .

نو دا شو دليل ددې چې د الله نبي صلى الله عليه وسلم مخکې له دې چې فتحه ورنصيب شي په مکي دور کې د ضعف او کمزورۍ په حال کې هم د بوتانو په ماتولو او د شرک په ختمولو کې خپل اخلاص رب ته پيش کړی دی .

نو چې اسلامي دولت د دومره پراخ واک او تمکين باوجود د شرک اثار او مواضع ونړول او د ځمکې دلر او بر کفار ، مشرکين ، روافض او ملحد صوفيان يې وډردول نو دا ولې موجب د طعن او ملامتيا ګرځي؟

نو اوس به تحريکي شورا خپلو کشرانو ته ددې مدللو ځوابونو نه څه بهانې ولټوي، د ځومره تأويلونو او تحريفونو دروازې به وټنګوي ترڅو د حق مخه ډب کړي خو د الله سنت به جاري کيږي اګر که ددې مخه نيونکي خپل نامشکور کوششونه جاري هم وساتي .

"کفري اثار او شرکي شعائر څکه نړوو "

اوس مونږ باندې لازمه ده چې د لوستونکو مخې ته دا مسأله د الله متعال په خاص فضل او توفيق سره ښهٔ واضحه او روښانه کړو او هغه دا چې دا د اسلام د مقدس دين اصول دي چې کله الله مسلمانا‌ن ته په يو لوېشت ځمکه هم واک او اختيار (تسلط او تمکين) ورکړي دلته به بيا د يو الله عبادت کيداى شي نه داچې هم دې د الله عبادت کيږي او هم دې د غير الله د عبات اجازه وي، لکه نن چې د امارت افغاني په زير تسلط مناطقو کې ليدلى شي او تحريک طالبان هم پدې نظر دي بلکې دا نظر خطاء فاحش او د الله د توحيد د عقيدې سره په ښکاره ټکر کې واقع نظر دى ،دا نظر د وحدت الاديان او وحدت الوجود نظريې ته لار هواروي دا نظر او اعتقاد د جهاد مقصد او هدف د خاورو سره خاورې کوي .

دا هدف د شهداؤ وينو سره د خيانت کولو مرادف نظر دى .

نو په همدې اساس چې کله په شام او عراق کې رب العالمين مجاهدينو ته تمکين ورکړ او په تحت التمکين منطقه کې يې پدې تونه ځمکه صرف د يو الله عبادت او عبادت کونکي ته ازادي ورکړه ،نور هيڅ قسم شرک او مشرک ته هلته ازادي نه وه نو همدا

وجه وه چې دغه ځمکه باندي يې د غيرالله عبادت لکه څنګه چې الله ته منظور نه دی داسې دوی هم نامنظور اعلان کړ او ددغې ځمکې نه يې د يهودو او نصاراوو کليساوې ، د هندوانو درمسالونه ، د روافضو امام باړې ، د صوفيانو شرکي مزارات او خانقاوې ټولې ونړولې او صرف خاص او خالص د يو الله متعال د عبادت فضا يې رامنځ ته کړه او همدا د شرعي جهاد هدف او غايه وه کوم چې د نبي صلى الله عليه وسلم د جهاد او عملي ژوند نه لکه د لمر داسې ښکاره ده ځکه دې موحدينو دا څنګه برداشت کړې وای چې د کومې ځمکې په سر چې دوی د کفارو او مرتدينو سره په کلونو کلونو قتال جاري ساتلی و، نن دې پکې هغې کفاروته هم د کفر او شرک ازادي وي؟

څنګه ازادي ورکړي چې پدې ځمکه د دوی د شهداؤ ويني توی شوې، د دوی بچې يتيمان شول او ميندې يې بورې ، ناوې کونډې شوې او دوی ددې ځمکې د فتحې نه مخکې پشان بعد له فتحې هم هماغسې دا کفري مراکز ولاړ پريږدي!

نه قطعاً نه ځکه دا خو بيا نه جهاد نشو او نه ورباندې نتيجه د جهاد مرتبه شوه، بس داسې مثال به يې وو چې يوجمهوري او ديموکراتيک نظام لاړه اوبل راغی!! معاذالله بلکې دا بل به د هغې نه زيات خطرناک او د اسلام په تاوان تماميدونکی نظام وي ، وجه داده چې دعوی د جهاد او شريعت کوي خو اجازه به پکې هر کافر ته ورکوي د دوی خوښۀ چې د هر چا عبادت کوي!

لکه نن د ملا ايبت امارت ددې ښکاره مثال دی .

خو الحمد لله د اسلامي دولت باتدبيره امام او زړورو موحدينو مجاهدينو داسې ونه کړل د" لايخاف لومة لائم " مصداق مظاهره يې وکړه ،نه ددې نه وډار شول چې روافض به اجتماعي ائتلاف وکړي ، نه د صوفيانو د منافقت پرواه ګير شو او نه يې ددې غم وکړ چې سبا به په مونږ اصلي کفار او کلمه ويونکي مرتدين راجمعه شي او دا ځمکه او واک به مو د لاسه لاړ شي ، ددې يو نه هم ونه ډارشول پدې ټولو ويرو او ډار يې د الله نه ډار کول مخکې او اهم وګڼل او دا فيصله يې وکړه چې مونږ نن په څه مکلف يو نو هغه د توحيد حاکمول او د شرک او کفر ختمول دي ، زمونږ ذمه داري صرف همدا ده ولو که سبا زمونږ د لاسه دا ټوټه د ځمکې لاړه شي خو چې عذر مو عندالله وي چې ربه مونږ ورباندې ستا شريعت سل په سله حاکم کړی و!

ربه مونږ پدې ځمکه چې څنګه مشرکين ، کفار او مرتدين ختم کړي وو، داسې مو د هغوی د کفر شرک او ردت شعاير هم ختم کړي وو ، ربه صرف د همدې هدف لپاره مو قرباني ورکړې وې او تر اخري سلګۍ وجنګېدو ، د هيڅ ملامت کوونکي له ملامتيا ونه ډار شو او دا هر څه مو ستا له ډاره کړيدي ای الله او ته پدې ښهٔ علم لرونکی يې او نن د خپل دښمن سره ستا مخې ته ولاړ يو!

**" دا کار د زمري زړه او د توحيد عقيده غواړي "**

نو د تحريک کشران او مشران دې واوري د اسلامي دولت بچي دا د توحيد بچي دي، دا د مرتدو نظامونو د شيريخ او ايس کريم وږي نه وو ، چې د الله په دين يې د چاسره سودا او تنزل ته قطعاً غاړه نه اینبودله ،د امارت افغاني او تحريک هندي پاکستاني طالبان نه وو چې کوم کافر وربانديې شل کاله کومې ناکردې وکړې خو دوی نن بېرته د همدې کافر په اخور کې د همدوی په بوسو او ونډو باندې شخوندونه وهي او بېرته د همدې کفارو د رضا او رسميت لاس ته راوړنې ارمانجن دي ، نه يې شريعت نافذ کړ او نه يې د کفر او شرک شعاير ختم کړل او نه به يې ختم کړي ولو کان بعضهم لبعض ظهيرا

او حال دا چې دا دنبوي منهج تګلاره ده چې کله هم تمکين لاس ته راځي ولو که يو ه ورځ ولې نه وي خو ته به دغه منطقه او علاقه د کفر او شرک د شعايرو نه صفا کوې دا ګندونه به ختموې ځکه پاک او نجس يو مقام کې نه جمعه کيږي .

دا ممکن نه ده چې يوه منطقه او علاقه وي يو ټوټه ځمکه وي هم دې وربانديې د الله عبادت کيږي او هم د غيرالله، د قدرت نه بعد ددې جواز دا د کفر عقيده ده ، صفا ردت دی ، صفا د الله متعال سره په شرک کولو باندې رضا لرل دي او دا قاعده د کتاب او سنت نه مستنبط ده چې " إنما الرضا بالـكـفر كفـر " نو د اسلامي دولت او خلافت امام او مجاهدينو چې ستاسې د دوستانو دربارونه او شرکي مواضع ونړول نو پدی کې بې

شمېره دلایل او سلف لري ، مدینه کې چې داراسلام اعلان شو نو بوتان مات شو بیا ځوک نشي پېش کولی چې چا روغ بوت پرېښي وي فتح مکه يې خيرٌ شاهدٍ ودليل دي

علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي : **ومنها أنه لا يجوز إبقاء مواضع الشرك والطواغيت بعد القدرة على هدمها وإبطالها يوما واحدا ، فإنها شعائر الكفر والشرك ، وهي أعظم المنكرات ، فلا يجوز الإقرار عليها مع القدرة البتة ، وهذا حكم المشاهد التي بنيت على القبور التي اتخذت أوثانا وطواغيت تعبد من دون الله ، والأحجار التي تقصد للتعظيم والتبرك والنذر والتقبيل لا يجوز إبقاء شيء منها على وجه الأرض مع القدرة على إزالته ، وكثير منها بمنزلة اللات والعزى ، ومناة الثالثة الأخرى .**

ژباړه : او د هغې جملې څخه دادي چې بې شکه جایز نه دي باقی پرېښودل د شرک د مواضعو او د طاغوتي ځایونو وروسته له قدرت څخه په نړولو او ورانولو د هغې یو ورځ هم ، ځکه چې دا د کفر او شرک شعایر دي او دا تر ټولو لوی منکرات دي ،نوپس جایز نه دي چې پاتې کېدل سره د قدرت نه ددې په نړولو بلکل، او دا حکم د هاغو بناګانو هم دی چې په قبرونو باندې جوړې شوې وي ، هغه بوتان او طواغیت نیول شوي وي چې عبادت يې بغیر له الله څخه کیدای شي او دغه ډول (داحکم ) د هغو کاڼو هم دی چې د تعظیم ، تبرک او نذر په وجه يې تعظیم کیدای شي ،ندي جایز باقي پاتې کېدل ددې څخه د هیڅ شي په مخ د ځمکې وروسته د قدرت نه په ختمولو د هغې او ډېر له

ژباړه : مونږ تر هغه پورې بيعت نه کوو تر څو چې خلک په يو امام نه وي را ټول شوي نو مالک رضی الله عنه ترې روان شو او هغوی يې په خپل حال پرېښودل .

دا يې ورته ونه ويل چې تاسي باغيان ياست او له واجب نه مو انکار وکړ ، د دومره احاديثو څخه خلاف کوئ او که مړه شوئ نو مرګ مو د جاهليت دی د خير القرون زمانه وه ورغلی هم صحابي ؤ او د بيعت غوښتنه هم د معمولي شخصيت لپاره نه کيږي ، صــــ 15 .

ځواب : د تحريکي شورى پدې دليل هم مونږ دوه قسمه نيوکه لرو :

1. يو داچې ددې عبارت نه چې دوی کوم مقصود د ځان لپاره اخلي دا قطعاً پدې عبارت کې نشته .

2. داچې دې عبارت باندې چې دوې کوم تعليق کړی نو دې کې يې هم د پوره جهل او بې علمۍ مظاهره کړې!

راځو ړومبي ځواب ته :

تحريکي شورې د ابن خلدون د عبارت پشان د شهاب الدين النويري د نهاية الارب عبارت کې هم د معنوي دجل نه کار اخستی سبحان الله سړی حيران شي دوی څومره په جرأت دا خبره ليکلې چې هغوی د علي سره بيعت ونه کړ نو هغه ملامت هم نه کړل خو خبره داسې نه ده بلکې د دومة الجندل والاوو چې د علي رضي الله عنه سره بيعت

نه دی کړی نو هغوی د معاویه رضي الله عنه سره هم بیعت نه دی کړی ځکه چې صاحب د نهاية الأرب د همدی عبارت نه درې سطره مخکې وضاحت کوي لیکي :

**وكان أهلها قد امتنعوا من بيعة على ومعاوية جميعا .**

ژباړه : او د دومة الجندل والاوو ځانونه د علي او معاويه دواړو د بیعت نه بند کړي وو ، نهاية الأرب ... ج 20/ ص 258 .

نو وګورئ تحریکي شورى صرف دغه برخه عبارت نقل کړی او پوره وضاحت يې پریښی ځکه دغه مونږ چې نقل کړه که دا برخه يې نقل کړې وای نو دا بيا د دوی د مدعا خلاف وه نو نر غونډې يې هغه نوش جان کړه او صرف دا يې نقل کړه چې هغوی د علي رضي الله عنه سره بیعت ونه کړ نو چې دومة الجندل والاوو د علي رضي الله عنه سره بیعت ونه کړ ملامت نه شول نو مونږ هم که د بغدادي سره بیعت ونکړ نو نه ملامتيږو .

ددې عبارت نه تحریکي شورى د موجوده خلافت سره ځانونو ته د بیعت نه بندول جایز کوي او حال دا چې د دومة الجندل والاوو که د علي رضي الله عنه سره بیعت نه وو کړی نو هغوی خو د معاويه رض سره هم نه وو کړی!

خو دلته تحریکیان بیا د موجوده خلافت په مقابل کې د نورو سره بیعت کې داخل او شامل دي نو مجبور يو چې د رب دا وینا وریاده کړو چې په سُورةُ البَقَرَة 85 نمبر ایت کریمه کې فرمايي : أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ.

نو دا دليل هم د دوی پدې مدعا برابر نشو .

دويم ځواب دا دی تحريکي شورى چې د دوی په نزد د لويو لويو مفتيانو نه مرکبه ده د هغې حيثيت ښهٔ په ډاګه شو داسې چې دوی د عربي عبارت په معنا کې ليکي مالک بن کعب الهمداني رضي الله عنه بيا لاندې شرح کوي او ليکي مالک رضی الله عنه ترې روان شو او هغوی يې په خپل حال پرېښودل!!!

بيا ليکي د خيرالقرون زمانه وه ورغلی هم صحابي وو او د بيعت غوښتنه هم د معمولي شخصيت لپاره نه کيږي ، نومونږ دلته تحريکي شورى ته وايو ايا دا مالک بن کعب دا رېښتيا صحابي وو چې تاسې ورته د صحابي مستحقانه جمله ليکلې چې "رضي الله عنه "؟ خو ځه که دې دعائيه جمله کې ګنجايش وي چې تابعي او د امت يو بل مسلمان او عالم ته دې استعمال شي نو دې نه به تېر شو!

تاسې بيا وروسته په کوم دليل ليکلي چې ورغلی هم صحابي وو دا ستاسې علمي مبلغ دی چې د صحابي او تابعي ترمنځ فرق نه شئ کولی!!

نو راشئ لږ زمونږ نه واورئ دا مالک بن کعب جدا دی دا الهمداني دی الأرحبي نسبتي لقب هم لري ابن ابي حاتم د خپل پلار ابو حاتم الرازي په حوالې سره په الجرح والتعديل کې بغير له توثيق او تجريح نه ذکر کړی .

په المعجم الصغير لرواة امام بن جرير الطبري کې په481/2 کې ليکي :

**مالك بن كعب الهمداني ، الأرحبي ، الكوفي ، من كبار التابعين ، من أصحاب علي رضي الله عنه ، وممن شارك في فتوح العراق ، ولا رواية له ، ترجم له ابن أبي حاتم ، وسكت عنه .**

نو مهرباني وکړئ که په عباراتو کې د قطع او معنوي تحريف نه نه حصاريږئ کم نه کم د صحابه وو عظمت ته خو لږ تحفظ ورکړئ خو خير تاسې ملامت نه ياست ځکه چې د اسلامي دولت او خلافت سره د دښمنۍ همدا حال جوړيږي، انسان چې بيا بې بريکه شي نه په درواغو شرميږي او نه يې د حيا سره څه کار وي ، بس کوشش کوي چې رطب او يابس جمعه کړي په سر زورۍ او حماقت د طفل تسلۍ مظاهره وکړي انا لله وانا اليه راجعون .

نو خلاصه نتيجه ددې ځواب دا ده : اول بيعت نه کول د علي رضي الله عنه سره دا د يو اجتهاد په اساس وو چې په دوه ډلو تقسيم وو ، يوه ډله معاويه رضي الله عنه ، د مديني بعضې انصار او مهاجرين او د مصر خربتا ښار والاوو چې تقريباً لس زره کسان وو هغوی بيعت نه کاوه ځکه هغوی ويل چې تر څو علي رضي الله عنه د عثمان رضي الله قاتلين قتل نه کړي مونږ بيعت نه کوو که قتل يې کړي نو بيا بيعت کوو .

بله او دويمه ډله دومة الجندل وه هغوی بيا د معاويه او علي دواړو سره بيعت نه کولو گويا هغوی پدې نظر وو چې د دوی ترمنځ قتال خامخا راځي نو که مونږ هرجانب سره

ودرېږو نو بل جانب سره به جنګيږو نو هغوی دا شرط کېښوده چې تاسې دواړه اتفاق وکړئ مونږ درسره ولاړ یو .

دويم ددې هر څه باوجود حق د علي رضي الله عنه سره و او نه کونکي په خطا وو کائنا من کان نو که تحريکيان د بغدادي خلافت تش په نوم خلافت ګڼي بيا به دا اقرار هم کوي چې د علي رضي الله عنه خلافت هم تش په نوم خلافت و، دغه ډول چې ځانته خروج د بغدادي د خلافت او بيعت نه صحيح ګڼي او ځانونه په حقه ګڼي او دا کار جايز ګڼي نو بيا به د علي رضي الله عنه د بيعت نه خروج کونکي هم په حقه ګڼي! خو که تحريکيان په علي او معاويه رضي الله عنهما او دې نورو کې هر جانب په حق ګڼي نو بل جانب ته به بيا د هغه سره قتال هم د حق سره قتال ګڼي نو اوس له دوی څخه پوښتنه کوو که معاويه او د هغه هم نظري په عدم البيعه کې په مقابل د علي رضي الله عنه کې په حق وي نو بيا مجبور ياست چې د علي رضي الله عنه خلافت کلعدم اعلان کړی ځکه قطعا دواړه په حقه نشي کيدای اګر چې د معاويه رضي الله عنه او د هغه د هم نظرو مساله اجتهادي وه دې ته مونږ باطل نه وايو خو د امت دپاره قطعي دليل هم نشي کيدای .

خو سړی حيران شي يو طرف د علي رضي الله عنه خلافت حق ګڼي او بل طرف ورسره د نه بيعت کونکو بيعت نه کول هم جايز ګڼي!!!

او بیا لا تعجب دا چې همدا کار د بغدادي د خلافت او د هغه نه د بغاوت کونکو لپاره دلیل ګڼي خو دلته بیا بغاوت کونکي په حقه او خلافت په باطله او تش په نوم خلافت ګڼي!

د تحریکیانو سره لکه د شعیب علیه السلام د قوم دوه تلې دي( لینے کے اور اور دینے کے اور)

دریم د بیعت نه کونکي د علي رضي الله عنه په مقابل کې د کوم طاغوت ملګري او د هغوی نه مدد اخستونکي هم نه وو لکه نن چې د خلافت مقابل کې تش په نوم جهادي تنظیمونه د بین الملل او نورو کفارو او طواغیتو سره تعلقات ساتي او بیا وایي چې د فلاني او فلاني سره مشوره ونه شوه ، الحمدلله اسلامي خلافت ته رب العالمین ډیر عقلمند ، زیرک ، علم لرونکي او فراصت لرونکي أهل الحل والعقد په نصیب کړي وو، هغوی ته د ړومبۍ ورځې نه ستاسي ذکر کړی د تش په نوم جهادي تنظیمونو مشران معلوم وو چې دا د طواغیتو الې دي ځکه دا د همدې لپاره کفري ملتونو ساتل او خاربه کول چې د خلافت مخه ورباندې ونیسي او د عالمي نظریې له اصولو نه د جهاد رخ وګرځوي نو ځکه یاد طاغوتي مشران خلافت ددې مستحق ونه ګڼل چې د خلافت په اعلان کې دې ورسره مشوره وکړی شي ځکه دا د اهل الحل والعقد له جملې څخه نه وو او نه یې هغه صفات لرل .

ګڼي نن دې تحريکي شورى او د هغوی کشران دا ذکر شوي تش په نوم جهادي تنظيمونه او د هغوی مشران وګوري يو نه يو طاغوت سره بسته او د خلافت مقابل کې ورسره په تعاونونو بوخت دي او وخت په وخت د بين الملل په غوجل کې پدې ستر طاغوت د ايمان راوړلو کلېمه تازه کوي ،

څلورم د بيعت په نه کولو سره د علي رضي الله عنه خلافت تش په نوم خلافت ونه ګرځېده بلکې خلافت يې راشده او خپله هم د راشد خليفه او امام په صفت موصوف دی او تحريکيان هم ددې نه انکار نه کوي خو بل طرف بيا ددې حق خليفه او راشده خلافت سره نه بيعت کونکي د ځان دپاره په دليل کې پيش کوي عجيب علم او عجيب استدلال دی!

پنځم د خليفه په تعيين کې اتفاق د ټول امت شرط نه دی بلکې د يوې علاقې اهل الحل والعقد او يا د هغوی څخه چې څوکسان هم د خليفه انتخاب وکړي نو دا د امت لپاره واجبوي چې هغوی يې طاعت وکړي .

او پدې تحريکيان هم قايل دي که چرته دوی دا نه مني نو بيا دې د علي رضي الله عنه خلافت ته باطل ووايي ځکه هغه د ټول اهل الحل والعقد نه بلکې د بعضو کسانو د اهل الحل والعقد والاو له طرف نه منتخب شوی و .

بیا تحریکي شورى په ۱۸ او ۱۹ صفحو کې د خلافت د انعقاد متعلق دویم او دریم مذهب هم ذکر کړی چې همدغه توکړه عبارت د ابن خلدون مخکې او وروسته کوي چې ګوره د علي رضي الله عنه سره بیعت نه وو شوی ملخصا بیا وروسته لیکي :

پدې اساس د بغدادي تش په نوم خلافت نه د ټول امت په اتفاق سره قایم شوی، نه د ټول اهل الحل والعقد په اتفاق سره او نه هم د جمهورو اهل الحل والعقد په موافقې سره صـــ ۲۰ .

⟸ **ځواب :**

د دوی دا خبره چې د بغدادي خلافت د ټول امت په اتفاق سره قائم نه دی نو دا خبره یې بې ځایه ده ځکه چې خلافت ته د ټول امت اتفاق شرط نه دی که چېرته یو کس متغلبا خلافت اعلان کړي اګر چې د چا ورباندې رضا هم نه وي بیا به هم داکس امام او خلیفه او په امت باندې به د داسې خلیفه طاعت واجب وي .

**قاضي أبو یعلى د امام احمد رحمه الله قول نقل کړی چې هغه فرمايي : ومن غلب عليهم بالسيف حتى صار خليفة وسمي أمير المؤمنين لا يحل لأحد يؤمن بالله أن يبيت ولا يراه عليه إماما عادلا كان أو فاجرا فهو أمير المؤمنين .**

ژباړه : او څوک چې د توري په زور باندې په مسلمانانو غلبه وکړي نو دا خلیفه او نوم به یې امیر المؤمنین وي نو هیڅ کس ته حلال ندي چې هغه په الله ایمان لري هغه دې

يوه شپه وکړي او دا خليفه په ځان باندې امام نه ګڼي برابره ده چې دا عادل وي او که فاجر خو دا به دمؤمنانو امير وي ، المعتمد في أصول الدين ص 238 .

دغه ډول محمد بن عبد الوهاب رحمه الله فرمايي الأئمة مجمعون من كل مذهب ، على أن من تغلب على بلد أو بلدان له حكم الإمام في جميع الأشياء ،

ژباړه : امامان د هر مذهب پدې متفق دي چې كه څوک په يوښار يا دوه ښارو غلبه وکړي دا به حکم داماو لري په ټولو أمورو کې .

الدرر السنية ج 9 ص 5 .

**ابن حجر رحمه الله فرمايي : قد أجمع الفقهاء على وجوب طاعة السلطان المتغلب والجهاد معه وأن طاعته خير من الخروج عليه ، لما في ذلك من حقن الدماء وتسكين الدهماء وحجتهم هذا الخبر . يعني حديث ابن عباس رضي الله عنهما عند البخاري " من رأى من أميره شيئا يكرهه فليصبر عليه فإنه من فارق الجماعة شبرا فمات إلا مات ميتة جاهلية "**

ژباړه : يقيناً اجماع کړي فقهاو په واجب والي د طاعت د متغلب امام او د جهاد كولو د هغه په ملتيا كې او پدې چې طاعت دده غوره دی د خروج کولونه په ده باندې ځکه چې پدې کېويني توېږي او رعيت ختميږي او دليل ددې خبرې هغه حديث د ابن عباس رضي الله عنهما دی چې بخاري تخريج کړی دی " چاچې د خپل امير نه داسې

څه وليدل چې ده بدګټل بس دا دي صبر وکړي په هغې باندې ځکه که څوک د جماعت نه يو لويشت هم جداشي او بيا مړشي نو دا مړ نه شو مګر په مرګ د جاهليت . فتح الباري 7/13

نو ګورئ دلته دغه د دين برجسته علماء کرام اجماع اواتفاق نقل کوي چې متغلب امام او خليفه چې بيخي ورسره چا بيعت نه وي کړی خو چې خلافت اعلان کړي نو بيا به يې خلاف خروج کول حرام او طاعت به يې واجب وي او ددې وجه او علت هم همدا دی چې اوس جماعت اعلان شو چې مراد دی له خلافت څخه، ځکه د خلافت نه بغير د جماعت اعلان په شخصي تنظيمونو نه کيږي او نه شخصي تنظيم د امت وکالت کولی شي ،ګني کوم ځای يو شخصي تنظيم د خپلې منل شوې بين المللي پولې او حدودو نه اخوا د کوم مسلمان په درد دوا شوی وي؟ بلکې په خپله وطني ساحه کې هم د مسلمان پرواه نه کوي پاتې خو لا د پولې نه بهر ، نور تنظيمونه به پريږدو صرف ستاسې تحريک ته به راشو په پاکستان کې روافض ښکاره په ممبرونو معاويه او ابو سفيان رضي الله عنه ته سپک الفاظ او توهين اميز کلمات استعمالوي عائشه او حفصه مور ته د زنا ښکاره نسبتونه کوي په ښکاره يې د عمر رضي الله عنه مجسمه جوړه کړه او د سرک په سر عمومي روډ باندې يې د هغې توهين وکړ خو ترننه تحريک ددې په مقابل کې د يو رافضي وينه تويه نه کړه او نه ددې طرفدار دی بلکې بار بار يې اعلاميې خپرې کړې چې زمونږ جنګ د اقليتونو او مذاهبو خلاف نه دی صرف د قابضې ادارې خلاف جنګ کوو نو اوس دې لوستونکي دوايي داسې نظريه لرونکي د خلافت دعوی کولی شي

داسې نظريه لرونکي د خلافت سره بيعت کولی شي ، داسې نظريه لرونکي چې خلافت سره بيعت ونه کړي نو خلافت به تش په نوم خلافت وي لا حول ولا قوة الا بالله .

نو غرض دا چې څنګه د متغلب امام طاعت واجب ، خروج ترينه حرام او مخالفت يې ممنوع دی داسې د هغه امام هم چې د اهل الحل والعقد په انتخاب منتخب شوی وي ولو که د بعضو اهل الحل والعقد انتخاب وي څکه مخکې مونږ د امام أبوبکر الباقلاني رحمه الله عبارت ذکر که چې هغه فرمايي : ولعلمنا بأن سلف الأمة لم يراعوا في العقد لأبي بكر وعمر وعثمان وعلي حضور جميع أهل الحل والعقد في أمصار المسلمين ولا في المدينة أيضا وأن عمر رد الأمر إلى ستة نفر فقط وإن كان في غيرهم من يصلح للعقد فوجب بهذه الجملة صحة ما قلناه .

ژباړه : او مونږ ته ضرور بالضرور علم دی ددې چې سلفو د امت په عقد د امامت کې د ابو بکر ، عمر ، عثمان او علی حضور د ټولو اهل الحل والعقد په ښارونو کې ندی شرط کړی او نه په يو ښار کې او دا چې عمرَ اختيار ورکړ د دې کار شپږ کسانو ته فقط اګر چې په نورو کې هم ددې عقد صلاحيت و، نوبس واجب شو پدې سره صحت د هغه څه چې مونږ وويلی .

تمهيد الأوايل وتلخيص الدلائل صـــ ۴۶۸ .

همدا خبره علامه آمدي رحمه الله هم کړې موصوف فرمايي : **فإن ذلك ما لم يقم عليه دليل عقلى ولا سمعى نقلى بل الواحد من أهل الحل والعقد والاثنان كاف فى الانعقاد ووجوب الطاعة والانقياد .**

ژباړه : پس بې شکه دا چې د ټول امت د اتفاق خبره ده نو دا هغه څه دي چې هيڅ عقلي ، سمعي او نقلي دليل نشته پدې باندې بلکې يو او يا دوه د اهل الحل والعقد څخه کافي دي په منعقد کولو د امام کې او په واجب والي د طاعت او انقياد کې .

بيا وروسته فرمايي : **وعلى ذلك انطوت الأعصار فى عقد الإمامة فى كل حين وعليه اتفاق كافة المسلمين .**

ژباړه : او په همدې طريقه انعقاد د امامت باندې ټولو پيړيو اتفاق کړی په هره زمانه کې او پدې ټولو مسلمانانو اتفاق کړی دی .

غاية المرام فى علم الكلام صــ ٣٨١ .

دغه ډول ابن حجر العسقلاني رحمه الله فرمايي : **قَالَ الْمَازِرِيّ : يَكْفِي فِي بَيْعَةِ الإِمَام أَنْ يَقَع مِنْ أَهْل الْحَلِّ وَالْعَقْدِ وَلا يَجِبُ الاسْتِيعَاب , وَلا يَلْزَمُ كُلّ أَحَدٍ أَنْ يَحْضُرَ عِنْدَهُ وَيَضَع يَدَهُ فِي يَدِهِ , بَلْ يَكْفِي اِلْتِزَامُ طَاعَتِهِ وَالانْقِيَادُ لَهُ بِأَنْ لا يُخَالِفَهُ وَلا يَشُقَّ الْعَصَا عَلَيْهِ .**

ژباړه : مازري فرمايلي كفايت كوي په بيعت كولو كې د خليفه سره دا چې اهل الحل والعقد ورسره بيعت وكړي او واجب ندي چې دا به ټول ورسره بيعت كوي او نه دا لازميږي په هرچا چې هغه دې حاضر شي او لاس دې دده په لاس كې كيږدي بلكې دده طاعت او تابعداري كول دا كافي كيږي داسې چې دايې مخالفت ونه كړي او ډله يې خيرې نه كړي .

فتح الباري شرح صحيح البخاري ٧ ج ٤٩٤ .

همدارنگه علامه نووي رحمه الله په شرح د صحيح مسلم كې فرمايي : **فَقَدْ اتَّفَقَ الْعُلَمَاءُ عَلَى أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ لِصِحَّتِهَا مُبَايَعَةُ كُلِّ النَّاسِ ، وَلَا كُلِّ أَهْلِ الْحِلِّ وَالْعَقْدِ ، وَإِنَّمَا يُشْتَرَطُ مُبَايَعَةُ مَنْ تَيَسَّرَ إِجْمَاعُهُمْ مِنْ الْعُلَمَاءِ ، وَالرُّؤَسَاءِ ، وَوُجُوهِ النَّاسِ...**

ژباړه : اواتفاق كړى دى علماوو پدې چې د امامت د انعقاد دپاره بيعت د ټولو افرادو شرط ندى او نه د ټول اهل الحل والعقد والا بس شرط پكې بيعت كول دي د بعضو هغو چې اسان وي راټوليدل د هغوى د علماؤ ، مشرانو او مخوريزو څخه ، شرح صحيح مسلم ١٢/٧٧ .

نوغرض دا چې د تحريكي شورى دا خبره چې د يو مذهب موافق د ټول امت اتفاق شرط دى دا بې هوده خبره ده ځكه هيڅ مذهب داسې نشته كه وي نو په تحريكي شورى لكه فرض داسې قرض شو مونږ ته دې داسې خلافت را وښايي چې د هغې د خليفه سره

ټول امت صريح اتفاق کړی وي او هر ښار نه ورسره هرکس بيعت ته لاس اوږد کړی وي .

" دامت اتفاق او د تحريک غلط فهمي"

تنبيه!! دلته يوه يادونه اړينه بولم او هغه دا چې بعضو کتابونو کې د اتفاق الامة الفاظ ضرور ذکر دي خو ددې نه مراد هغه اتفاق د اهل الحل والعقد دی ځکه ددوی اتفاق د امت اتفاق تصور کيږي خو ددې هرگز هم دا مطلب ندی چې که بعضې اهل الحل والعقد يو کس منعقد کړي نو دا به گڼي خليفه نه وي او دده سره بيعت کې به د امت لپاره چاته جواز وي چې که بيعت ورسره کوي او که نه ، لکه کوم گمان چې تحريکي شورى کړی دی نه قطعاً داسې نه ده بلکې د شريعت ډيرى احکام داسې دي چې د بعضو اتفاق پکې د ټول امت اتفاق گڼل کيږي گڼي تاسې وگورئ د أبوبکر صديق رضي الله تعالى عنه سره په مهاجرو کې عمر او عبيده بن الجراح رضى الله عنهما او د سقيفه بنى ساعده انصارو بيعت وکړ له هغې وروسته بيا مسلمانانو باندې ورسره بيعت واجب وگرځېده .

همدا ډول بيا استخلاف د ابو بکر رضي الله عنه وو ځکه هغه عمر رضي الله عنه منتخب کړ دا بيا د ټول امت انتخاب وگرځېده ، عمر رضى الله عنه چې کله شپږ کسيزه شورى کنښېنوله چې رجع په اختيار کې علي ، عثمان او عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنهم ته پاتي شوه چې بيا بن عوف رضي الله عنه عثمان رضي الله عنه منتخب کړ نو علي رضي الله مخالفت ونه کړ او بيا د هغه ځاى موجودو ټولو مسلمانانو دا بطورخليفه ومانه نو دا هم گوره د ټول امت اتفاق تصور شو اگر چې داسې نه وه چې صحابه وو کې همدا شپږ کسان د اهل الحل والعقد ښخه موجود وو نه بلکې په سلگونو بدريان دغه ډول د

بیعت الرضوان او غیره جلیل القدر صحابه موجود وو چې ادنی یې زمونږ د زماني د ټول امت د علماؤ ، مجتهدینو ، فقهاو او مجاهدینو نه غوره افضل او د پریکړې په واک ، اختیار او انتخاب کې زیرک او پوهه لرونکي شخصیتونه وو ،،

نو خلاصه دا چې مخکني خلفاء او خلافتونو کې یو باندې هم دا سې اتفاق ندی نقل او نه یې څوک ثابتولی شي چې هر یو فرد د مسلمانانو دا اقرار کړی وي چې همدا خلیفه مو خلیفه او همدا منم او هر ښار د مسلمانانو کې هر فرد دا اقرار کړی وي او نه دېته شریعت کې ضرورت شته بلکې دا حکما د امت اتفاق تصور شو .

بیا د علي رضي الله عنه خلافت دنیا ته علم دی چې د امت لویې برخې ورسره اتفاق ندی کړی خو ددې باوجود دغه خلافت صحیح او بیعت نه کونکی یې ملامت دی بلکې که د عاقبت په اعتبار سره وویل شي چې د علي رضي الله عنه خلافت په اتفاق د امت سره صحیح او ثابت خلافت وو نو دا به بلکل درست وي خو سره له دې چې امت اتفاق ندی کړی د هغه په خلافت خو د دوی عدم اتفاق تاوان هم نه دی رسولی دده امامت او خلافت ته او دا بحث مخکې تیر شوی .

بیا د تحریکي شورى دا خبره چې د بغدادي خلافت .......

او نه د ټول اهل الحل والعقد په اتفاق سره او نه هم د جمهورو اهل الحل والعقد په موافقې سره ...صــــ ٢٠ .

⇐ **الجواب :**

ددې شبهې نه يې ځواب ته دا مخکې ځواب کافي دی چې د ټول اهل الحل والعقد نه مراد کومه اندازه ده نو هغه معلومه ده ځکه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات نه بعد مهاجرو کې صرف عمر او ابو عبيده او د سقيفې انصار رضي الله عنهم اجمعين اهل الحل والعقد وو فقط نور نه وو؟

که وو هغوی خو لاخبر هم نه وو او دلته سقيفه کې ابوبکر رضي الله عنه خليفه مقرر شو!! ايا دا ټول اهل الحل والعقد وو؟ بيا خپله ابو بکر رضي الله عنه تنها استخلافا عمر رضي الله عنه مقرر کړ دا د امت اتفاق تصور شو بيا عمر رضي الله عنه د عثمان رضي الله عنه په ټاکنه کې په زرګونو صحابه وو کې صرف شپږ کسان مقرر کړل ايا دا ټول اهل الحل والعقد وو؟

ايا نور اهل الحل والعقد صحابه وو کې نه وو؟ که وو ولې دلته جمعه نه شول؟ او که نه وو ددې دليل کوم ځای دی؟ علامه ماوَردي رح په الأحكام السلطانية کې فرمايي :

**فأما انعقادها باختيار أهل الحل والعقد فقد اختلف العلماء في عدد من تنعقد به الإمامة منهم على مذاهب شتى ، فقالت طائفة : لا تنعقد إلا بجمهور أهل العقد والحل من كل بلد ؛ ليكون الرضاء به عاما والتسليم لإمامته إجماعا ، وهذا مذهب مدفوع ببيعة أبي بكر ، رضي الله عنه ، على الخلافة باختيار من حضرها ولم ينتظر ببيعته قدوم غائب عنها .**

ژباړه : بهرحال منعقد کيدل د امامت دا د أهل الحل والعقد په اختيار کې دي او اختلاف کړی علماؤ پدې کې په مختلفو اقوالو کې نو يوې طائفې ويلي چې دا نه منعقد کيږي مگر د جمهورو اهل العقد والحل په تاکنه چې د هر ښار څخه به وي ددې لپاره چې رضا ورباندې عامه او مشري يې اجماعي طريقې سره تسليم کړی شي خو دا مذهب د ابو بکر رضي الله عنه سره د بيعت په دليل مردود دی ځکه چې هغه حاضرينو غوره کړ او په بيعت کولو کې غائيبينو اهل الحل ته انتظار ونشو ، الأحکام السلطانية صــ ٢٣ .

همدا ځواب مونږ د جمهورو باب کې هم کوو او هغه دا چې د ابوبکر ، عمر او عثمان رضي الله عنهم خلافت چې څنگه په اتفاق د ټولو اهل الحل والعقد ندی منعقد شوی داسې د جمهورو اهل الحل والعقد حضور هم څوک نشي ثابتولی ځکه جمهور د قليلو په مقابل کې راځي خو دغه يو خلافت کې هم که اندازه ولگول شي نو جمهور نه دي حاضر شوي بلکې هر نشست کې د شمار اهل الحل ناست دي او انتخاب يې کړی او بيا ټولو ورسره خبره منلې او چا مخالفت ندی کړی نو همدا اتفاق د امت تصور شوی دی او کوم ځای چې د بعضو اهل علمو په عباراتو کې جمهور او يا د اتفاق کلمه ذکر کيږي نو د هغې نه مراد همدا دی دغه انتخاب د اهل الحل والعقد دا نيابت دی د جمهوروو ، د اتفاق او اجماع څخه دې لوستونکي مخکې فصول په دقت سره مطالعه کړي نو دا خبره به ورباندې لکه د لمر داسې روښانه شي او د تحريکيانو د وسسو او شبهو نه به په دليل سره نجات ومومي او پدې به پوه شي چې دا خلک نه د امت غم وړي او نه د اتفاق طلبگار دي بلکې د وطني کړيو په جال کې گير فرقه واريت ته لمن

وهونکي طاغوت پرست دي چې د اسلامي خلافت او دولت په مقابل کې د بغاتو او بدبختو خوارجو په قدم روان شوي حشري دي.

بیا تحریکي شورئ لیکي :

ځکه اهل الحل والعقد چې تفصیل به یې وروسته راشي د امت له مخورو علماؤ او د اسلامي گوندونو له مشرانو څخه عبارت دی او له بغدادي سره د امت په رهبرانو ، نړیوالو جهادي علماء کرامو ، مخورو او معتمدو اشخاصو کې هیچا هم بیعت ندی کړی صــ ۲۰ .

ځواب : د تحریکي شورئ د اهل الحل والعقد دا تعریف کول هم محال النظیر دی ځکه چې اسلام کې گوندونه یعني تنظیمونه نه وي ، اسلام په اتفاق امر کوي او د افتراق نه اجتناب اونهې ذکر کوي الله متعال فرمايي : **واعتصموا بحبل الله جميعا ولاتفرقوا**

.

خو تحریکي شورئ خامخا اهل الحل والعقد نه د تنظیمونو مشران مراد کوي که دا مراد شي نو بیا خو دا گوندونه صحابه وو کې قطعاً موجود نه وو نو بیا لابدي شوه تحریک ته چې هغوئ اقرار وکړي چې د ابو بکر ، عمر ، عثمان او علي رضي الله عنهم اجمعین سره بیخي اهل الحل والعقد بیعت ندی کړی!!

بیا عجیبه سپین سترگي لا دا چې دوی دا شاته واچول چې د ابو بکر بغدادي تقبله الله تعالی سره د شام او عراق نه واخله تر خراسان ، افریقا ، جزیري ، لیبیا ، مصر او یمن

پورې ورسره بیعتونه وشو ولې دا ټول مسلمانان سبزی ته ناست وو چې هغه یې خرڅوله!
نه بلکې دوی په مختلفو جبهاتو کې د کفارو خلاف جهادونه کول په همدې هدف او مقصد یې کول چې رب مؤمنانو ته خلافت ورنصیب کړي او د کفارو خلاف د یو قیادت لاندې جهاد شروع شي ، د رب دین ته غلبه نصیب شي او د الله مؤمن بنده ګان د شرف په لباس مشرف وګرځي نو کله چې یې د خلافت اعلان ترغوږو شو نو ددې متعلق یې د خپل تحقیق نه بعد خپل بیعتونه خلیفة المسلمین ته ور واستول دا دی لسیزه پوره شوه چې لا هم په خپل کړي بیعت ټینګ ولاړ دي ، د صلیبي ټلوالې او د هغوی د ساتل شویو مرتدینو خلاف یې عالمي جهاد ته ادامه ورکړې چې الحمد لله ډیری ولایاتو کې رب پراخ تمکینونه ورکړي ،چې د رب نازل کړی شریعت یې ورباندې حاکم کړی دی خو بیا هم د تحریکي شورى د غفلت لرې کولو په پار به ووایم چې په عراق کې نامتو عالم او د جهادي جبهې مشر ابو علي الانباري چې د عراق په ځمکه یې د پخوانه د صدام ، نورو طواغیتو او صلیبي ټلوالې خلاف جهاد جاري و، د خپلو ټولو افرادو په شمول یې د خلیفة المسلمین سره بیعت وکړ او د دارالاسلام د سرحداتو نه د ساتنې او رباط په حال کې د شهادت جام نوش کړ ، نحسبهم کذلک والله حسیبه ولا نزکي على الله احدا .

بل ابو عمر الشیشاني د ققفاز د مهاجرینو ، مجاهدینو ترمنځ مخوره جهادي څیره وه هغه د خپلو افرادو سره بیعت وکړ او داسې په لسګونو سربراهان چې د مستقلو جبهاتو امیران وو په شام او عراق کې یې د خلیفة المسلمین سره بیعت وکړ دغه ډول شیخ ابو

انس الشامي تقبله الله  چې په اسدالرافدين سره يې شهرت ترلاسه کړی و، چې پخوا د جماعة التوحيد والجهاد د اللجنة الشرعية مسؤل و، هغه هم د خپلو ټولو افرادو په شمول د خليفة المسلمين سره بيعت وکړ او د السمع و طاعة عملي ميدان ته يې ځانونه پيش کړل ،بل مشهور مجاهد او قائد شيخ عمر حسين حديد المحمدي چې په اسد الفلوجه سره يې شهرت لرلو هغه هم خپل بيعت د خليفة المسلمين سره وکړ ، بل مشهور مجاهد او قائد دوکتور حذيفه البطاوي تقبله الله هم خپل بيعت د خليفة المسلمين سره وکړ چی دا بيا وروسته د بغداد د والي مناف راوی نائب هم مقرر شوی و ، دغه ډول بل مشهور شخصيت الشيخ القائد والأسد المجاهد : أبو عبد الرحمن البيلاوي الدليمي الأنباري تقبله الله ده هم خپل بيعت د خليفة المسلمين سره وکړ ، همدارنګه ابو محمد العدناني دا خو يو داسې منور ، مخور او نامتو شخصيت و، چې ترننه يې اواز په کفارو او مرتدينو د اسماني تندر نه کم نه لګيږي، نوموړی د خليفة المسلمين ړومبی وزير پاتې شوی ،دغه ډول ابو الحسن المهاجر الحجازي چې دا هم د خليفه المسلمين د وزير په صفت پاتې شوی ، دغه ډول نور علماء، مشايخ او مخور مجاهدين او قائدين لـکـه شيخ ابو ابراهيم (عبد الله قرداش) تقبله الله ،الشيخ المجاهد عبد الحکيم ابو عبيده تقبله الله

الشيخ المجاهد أبو قسورة المغربي تقبله الله .

الشيخ المجاهد ابو داود الحلبي تقبله الله .

الشيخ المجاهد ابو مالک التميمي تقبله الله .

الشيخ المجاهد القائد أبو يحيىٰ العراقي تقبله الله .

الشيخ المجاهد القائد أبو صالح حيفا تقبله الله .

او داسې نور بې شميره علماء او قائدين چې د عراق په ځمکه يې مختلفو جبهاتو او حلقاتو کې د صليبي ټلوالې او مرتدينو خلاف د جهاد ډګرونه او سنګرونه ګرم ساتلي وو چې د خلافت د اعلان سره سم يې د خليفة المسلمين ابو بکر بغدادي تقبله الله تعالى سره خپل بيعتونه وکړل او خپل ټول افراد يې د خلافت تابع او منقاد وګرځول، دغه ډول نور ولايات به پرېږدو د خراسان ولايت نه د بيعت کونکو جهادي مشرانو شمير ته به راشو د تحريک طالبان مهم رکن او حکيم الله محسود ته نږدې کس چې د سلګونو افرادو مشرېې په غاړه لرله : حافظ سعيد خان تقبله الله د خپلو ټولو افرادو سره بيعت اعلان کړ ، د امارت په ليکو کې مشهور او زړور شخصيت شيخ عبدالرؤف خادم تقبله الله خپل بيعت اعلان کړ ،سعد امارتي چې د امارت په ليکو کې زړور او موحد شخصيت وو هغه خپله جبهه کلعدم اعلان کړه او د خليفة المسلمين سره يې بيعت وکړ ، همدا راز شيخ مقبول تقبله الله تعالى چې د نوم سره يې نور خو پرېږده د تحريک هر وړوکی او زوړ اشنا دی هغه خپل بيعت د خليفة المسلمين سره وکړ ، دغه ډول شيخ قاسم ، شيخ جلال الدين تقبلهما الله تعالى وغيرهم بې شماره شيوخو او جهادي مشرانو د مختلفو مهالکوځخه هجرتونه وکړل او دلته په خراسان کې يې د خليفة المسلمين سره بيعتونه وکړل چې دا ټولې دنيا ښهٔ په ښکاره وليدل خو دا چې معترض د ړوند په مثل وي ،

نو لهذا تحریکي شورا ددې ځلانده ستورو نه ځانونه غافل او ناخبره وښودل چې د دوی ددې خبرې مزید ردّ به وروسته هم ان شاء الله تعالی بیان شي .

تحریکي شوری لیکي :

بغدادي صاحب ځکه خلیفه ندی چې دده تش په نوم خلافت د اهل السنت والجماعت له عقیدې څخه مخالف دی ځکه د اهل السنت و الجماعة عقیده دا ده چې خلافت د جمهورو اهل الحل و العقد په موافقې سره قایمیږي او اهل الحل والعقد په امت کې د شان اوشوکت لرونکو ته وایي چې د دوی په موافقت او بیعت سره د خلافت مقصود تر لاسه کیږي چې هغه قدرت او تمکین دی صــــ ۲۱ .

⟸ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

تحریکي شوری قسم خوړلی چې د خپل ضد او عناد څخه وا نه وړي ولو که دریځ یې د بطلان وزرونه هم وکړي .

همدا یو خبره مخکې او وروسته کوي چې جمهورو اهل الحل والعقد ورسره بیعت ندی کړی او حال دا چې مونږ مخکې بار بار د معتمدو اهل السنة علماؤ څخه پیش کړه چې اتفاق او جمهوریت د اهل الحل والعقد دا شرط نه دی ، وجه دا ده چې په نفي د شرط نفي د مشروط واقع کیږي او په مخکنیو خلفاو کې د هیڅ خلیفه سره شوک د جمهورو اهل الحل والعقد اتفاق په انتخاب کې نشي ثابتولی بلکې د بعضو بیعت او انتخاب دا

به د ټولو بيعت ګڼلی شي او همدا مقصود د شيخ الاسلام رحمه الله د عبارت هم دی کوم چې تحريکي شورى يې بار بار ذکر کوي .

ځکه د خليفة المسلمين ابو بکر بغدادي تقبله الله تعالى سره ددې بيعت په سبب مقصود د خلافت حاصل شوی و، چې هغه قدرت او تمکين و او نن هم ورسره الحمدلله د ځمکې په مخ پراخ تمکينونه موجود دي ،او که تحريکي شورى د ځمکې په ټول مخ تمکين يادوي نو بيا دې د علي رضي الله عنه د خلافت نه هم انکار وکړي ،ځکه چې په کوفه يې کې د خلافت اعلان کړی و او ټول شام د معاويه رضي الله عنه په لاس کې و مخالفت يې کولو او بيعت يې هم ورسره نه کولو ،بيا د علي رضي الله عنه د ټول خلافت په موده کې د کفارو خلاف جنګ هم ندی شوی بلکې اکثر جنګونه د مسلمانانو ترمنځ شوي دي لکه شيخ الاسلام رحمه الله فرمايي :

**وخلافة علي لم يقاتل فيها كافر ولا فتح مصر وإنما كان السيف بين أهل القبلة .**

ژباړه : او د علي رضي الله عنه خلافت کې د يو کافر سره هم جنګ ندی شوی او نه کوم ښار فتحه شوی بلکې توره د اهل قبلې ترمابين چلېدلې ده .

منهاج السنة النبويه 546/1 .

دغه ډول عثمان بن عفان رضي الله عنه په دارالخلافه کې بلکې په خپل کور کې د مخالفت کونکو نه بچ نشو ان تر دې چې په ډېره بې رحمۍ سره يې په شهادت ورساوه ، نو اوس د تحريکي شورى د اصولو موافق دوی ته پکار دي چې ووايي عثمان رضي

الله عنه دومره قدرت او قوت نلرلو تر دې چې خپل كور ته ورپسې دښمن رانټوت ، هغه يې شهيد كړ او بيت المال يې چور كړ نو لهذا ده ته قدرت نه وو حاصل نو نتيجه به يې دا وي چې اهل الشوكه ورسره بيعت نه وو كړی!! نوده ده خلافت به هسې تش په نوم خلافت وي ځكه چې علامه مفسر ابن كثير رح فرمايي :

**وانقطع عثمان عن المسجد فكان لا يخرج إلا قليلا في أوائل الأمر ، ثم انقطع بالكلية في آخره ، وكان يصلي بالناس في هذه الأيام الغافقي بن حربوقد استمر الحصر أكثر من شهر ، وقيل أربعين يوما ، حتى كان آخر ذلك أن قتل شهيدا رضي الله تعالى عنه .**

ژباړه : او عثمان بند شوی و له مسجد څخه پس نه به راووت مګر كم د واقعې په ابتداء كې بيا له هغې وروسته مكمل بند شو او خلكو ته په دې ورځو كې مونځ غافقي بن حرب وركاوه او دا محاصره د يوې مياشتې نه زياته وغځېده او ويل شوي چې څلوېښت ورځې وه تر دې چې اخري حال يې دا وو چې شهيد قتل كړی شو الله دې له ده څخه راضي شي . البداية والنهاية ١٩٨/٧

نو اوس د تحريكي شورى او د هغې د مفتيانو د اصولو موافق بايد ومنل شي چې د عثمان رضي الله عنه خلافت د سره خلافت نه و، ځكه ټوله ځمكه پرېږده په خپله دارالخلافه كې مسجد ته د لمانځه لپاره نشي راوتلی نور خو لاپرېږده نو قدرت څه شو تمكين څه شو اهل الشوكة څه شو؟

نه بلکې صحيح خبره دا ده لکه څنګه چې د علي  او عثمان رضي الله عنهما سره بعضو اهل الحل والعقد بيعتونه کړي او د هغې په سبب هغوی حق خلفاءګرځېدلي همدا ډول موجوده خلافت هم په دې وصف موصوف او په دې نهج او منهج روان خلافت دی، چې د نړۍ کفار او مرتدين يې مقابل کې په سخترين حربي شکل سره تحالف ته مجبور شوي او خوبونه يې ورته حرام کړي دي .

تحريکي شورى ليکي :

لنډه دا چې د اهل السنت و الجماعت په عقيده کې يو سړی تر هغې پورې خليفه نشي کيدای تر څو چې د شان او شوکت لرونکي خلک بيعت ورسره ونه کړي ، ځکه د هغوی موافقه د نورو خلکو موافقه بلل کيږي او په امت کې چې کوم جهادي ستر شخصيتونه دي هغه شاته په لکونو مجاهدين لري او د خپلو بې دريغه قربانيو په ترسره کولو يې ډيرې کارنامې ترسره کړيدي هغوی د بغدادي صاحب له تش په نامه خلافت سره موافق ندي نو ځکه د اهل السنت والجماعة د عقيدې په رڼا کې د بغدادي تش په نوم خلافت داعتبار وړ نه ده ، صــــ ٢٣ .

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

فارسي کې متل دی درد هرچه ميرود ولی در شکم نمی رود .

د اسلامي خلافت اعلان د نورو طاغوتي تنظيمونو په خير د تحريک طالبان د تنظيم حقيقت هم دنيا ته راښکاره کړ نو ځکه بار بار دا خبره کوي چې دا خلافت د اهل السنة والجماعة په اصولو قايم خلافت نه دی.

لوستونکو مونږ به يا ژوندي يو او يا به د رب حضور ته پېش شوي يو خو ان شاء الله دا ليکل به باقي وي کوم لوستونکي چې هغه وخت ژوندي وي هغوی دې بيا اندازه ولګوي که ددې طاغوتي تنظيمونو ورځه وو سبا د مهدي خلافت ته هم دا نوم ورنه کړ چې دا د اهل السنة والجماعة د اصولو مخالف خلافت دی نو بيا به مونږ د دوی په حق کې په تجاوز کې مبالغه کړې وي .

دلته وګورئ وايي : په امت کې چې کوم جهادي ستر شخصيتونه دي هغه شاته په لکونو مجاهدين لري او د خپلو بې دريغه قربانيوپه ترسره کولو يې ډېرې کارنامې ترسره کړې هغوی د بغدادي صاحب له تش په نامه خلافت سره موافق نه دي ، دلته دې لوستونکي د تحريکي شورى دا اشاره ووينې چې ددې نه يې مراد څوک دي نو وضاحت يې وروسته خپله کړی وايي بلکې د مجاهدينو په ټولنه کې چې کوم مخور مشران دي ، رهبران دي ، مشهور جهادي علماء دي او امت ته يې د معاصر نړيوال جهاد نظريه او فکر ښودلی شاته په لکونو مجاهدين ، ملاتړي او کومکيان لري ، لکه امير المؤمنين ملا محمد عمر ، دکتور ايمن الظواهري صاحب ، ابومصعب عبدالودود ، د الجزائر د مجاهدينو مشر ، د يمن دالقاعدې مشر ناصر الوحيشي ، د صوماليا د الشباب د مجاهدينو مشر ، د پاکستان د طالبانو د تحريک مشر ، د مالي د مجاهدينو مشر ، د

ققفاز د مجاهدينو مشر ، د شرقي ترکستان سنکيانګ فلفاين ، اندونيزيا او ايران د مجاهدينو مشران همدغه راز مشهور نړيوال جهادي علماء کرام لکه د جهاد لاربنود ابو محمد المقدسي ، ابو قتادة الفلسطيني ، عبدالله المحيسني ، هاني السباعي ، ابو المنذر الشنقيطی او داسې نور پدې ټولو کې هيچا هم له بغدادي سره موافقه نه ده کړې صـــ ۲۴ .

سبحان الله د قيامت په ورځ به تحريک څه ځواب ووايي که د بغدادي خلافت حق وی او دوی ورسره پدې بيعت نه وی کړی صرف پدې چې ددې خليفه او خلافت سره دې يادو افرادو بيعت نه دی کړی نو مونږ هم ورسره ونه کړ؟ ايا د دوی فعل قول او عمل دليل کيدای شي؟

بل د ملامحمد عمر يادونه خو بايد دوی له سره کړې نه وای ځکه چې اعلان د خلافت نه کافي موده مخکې دا وفات شوی و، ای ايس ای د خپلو شخصي ګټو په اساس صرف د هغه د نوم نه استفاده کوله او بيا هم د خلافت د اهل الحل والعقد شوری د اعلان نه مخکې دده په نوم خطوط راولېږل او خپله مشوره يې ورسره پدې باب کې شريکېدل وغوښتل خو د طويل انتظار باوجود يې هيڅ کوم ځواب له طرفه رانه غی او کوم چې د امارت حال دی نو دا خو دغه دی هرچا وليده چې جنګ يې د وطن دپاره وو او نن يې دښمني د جمله اهل کفر سره په داسې دوستۍ بدله شوې چې د ځمکې په مخ د يو کافر سره دښمني نلري چې تفصيل يې بار بار نورو مقاماتو کې شوی او کوم چې د

ظواهري عدم بيعت دی نو د هغه گمراهي ، عناد او جهالت خو دې باب کې دومره ښکاره دی چې د سليم عقل خاوند به پکې هيڅ شک او تردد ونه کړي .

ځکه کله چې آي آيس آی وليدل چې اوس د امارت د جنگياليو مخه خلافت ته اوړي نو فوراً يې د اخترمنصور تعيين اعلان کړ او ظواهري چې د مخکې نه د آی آيس آی د لاس او اشارو لاندې د تش په نوم امارت د همدې روند بيرغ لاندې د همدې روند قيادت په بيعت کې پاتې شو سره له دې چې بيعت صرف او صرف د خليفه سره سنت طريقه ده او د خليفه په موجوديت کې د بل چاسره بيعت کول دا جهالت او گمراهي ده بيا سره ددې چې دې امارت افغاني بار بار ملل ملحده ته د خپل ځان وړاندې کولو لپاره له القاعده څخه خپل برأت هم اعلان کړ خو ده ځان ددې باوجود هم هغوی پسې تړلی و، چې بالآخره امارت ورسره د خپل قطري قراداد موافق څه وکړل نو دا په هيڅ چا پټ پاتې نشو .

نو که تحريکي شوری خامخا د داسې کس عدم بيعت کول د خليفه او خلافت نقصان گڼي دا نو بيا ډېره عجيبه ده او کومه يادونه يې چې د پاکستان د طالبانو د تحريک د مشر کړې چې ده ورسره بيعت ندی کړی نو دا يې هم تعجب انگيز خبره ده ځکه چې خلافت دا د يو وطن او حد پورې محدود نه وي بلکې دا د ځمکې په مخ د هرکافر خلاف جهاد جارې ساتي خو د تحريک طالبان پاکستان منشور ددې سره په سخت ټکر کې دی ځکه چې دا يو وطني گروپ دی چې صرف د اسلام اباد د چوکۍ او د پاکستان دشمنۍ لاس ته راوړلو په پار د هندوستان او بعضو نورو سيمه آيزو استخباراتي کړيو

په اشارو د پاکستان د حکومت د عسکري طبقې خلاف جنګیږي او دا کومه دعوه نه ده و بلکې د افغانستان د تیر جمهوریت د ملي امنیت سره د تحریک طالبان پاکستان تړاو او اړیکې له هیچا پټې نه دي ، او د همغوی په وساطت د هند مرستې هم علني وې او اوس هم دي، او فقط پدې خو د زړو نه زیات دلایل دي خو غټ یو ښکاره دلیل یې دا خط دی کوم چې د تحریک طالبان مشر مفتي نور ولي محسود له خوا د نړیوالو کفارو او وطن پرسته ملایانو او مشرانو په نوم شایع شوی دی راځو او دلوستونکو مخې ته ددې لیک بعضې مهمې برخې وړاندې کوو او بیا وربانديې ردّ ذکر کوو ترڅو الله متعال د تحریک کشرانو کې دا ملکه پیدا کړي چې په حقیقت پوه شي او د حق سره ملګري شي .

د تحریک طالبان مشر ابو منصور عاصم مفتي نورولی محسود وایي :

السلام علیکم ورحمةالله وبرکاته

و بعد : تر هر څه وړاندې غواړم له هغو په وطن مینو او وفادارو ټولو دیني ، سیاسي او قامي مشرانو څخه مننه وکړم چې اوسني اعلان شوي "عزم استحکام" عملیات یې رد کړل الله سبحانه وتعالی دې په راتلونکي کې هم د هېواد دیني ، سیاسي او ملي مشرانو ته د دې توفیق ورکړي چې په داسې موضوعاتو کې خپلواک او ریښتونی دریځ خپل کړي .

## ⇐ د تحريک د مشر د ليک پدې برخه زمونږ تبصره

هم واورئ دلته ښهٔ وګورئ د تحريک مشر خبره د وطنيت نه شروع کړې او اخر کې به يې هم وګورئ چې په وطنيت يې ختمه کړې بيا عجيبه دا چې د پاکستان سياسي جماعتونه ټول د جمهوريت او ډيموکراسۍ طواغيت او مرتد ګوندونه دي ،خو د تحريک مشر ورڅخه منني کوي او د الله نه د مزيد توفيق دعا ګاني غواړي ايا داسې مشر د خلافت سره د بيعت وسع او توان لري؟ ايا داسې کس چې د خلافت سره بيعت ونه کړي نو خلافت به بيا خلافت نه وي؟! مالکم کيف تحکمون .

د تحريک مشر بيا وايي :

د هيواد او ولس محترمو مشرانو!

دا يو حقيقت دی چې په پاکستان کې د رواني جګړې پيل موږ نه دی کړی ، بلکې دا جګړه پر موږ تپل شوې ده .

## ⇐ زمونږ تبصره :

انا لله وانا اليه راجعون کله بيخي حيران شو ،چې د تحريک کشران دا ټول هرڅهويني او اوري خو بيا هم په خپل دې جاهل مشر باندې کلک ولاړ دي ، د تحريک مشر بر ملا اعلان کوي چې دا جنګ په مونږ تپل شوی پيل يې مونږ نه دی کړی خو کشرانو ته يې بيا ملايان د جهاد په نوم ور معريفي کوي او د شهادت او جنت په طمع يې د

وطنیت پدې تپل شوي جنګ کې ور دیکه کوي ،خو دوی کله هم فکر ونه کړ چې دا مونږ څه کوو!!

د تحریک مشر وایي :

محترمو!

لکه څنګه چې څرګنده ده چې له تېرو شلو کالو راهیسې د پاکستان په لر او بر کې د تحریک طالبان پاکستان او د اشغالګر پوځ تر منځ جګړه روانه ده ، مونږ د پاکستان پنځه سوه مشهورو ، نامتو او معتبرو علماوو او مفتیانو د تاریخي فتوا په رڼا کې خپل دفاعي جهاد ته دوام ورکړی .

⇐ زمونږ تبصره :

دېته وایي دوه مخي! هلته وایي په مونږ راتپل شوی او دلته بیا دې جنګ ته د دفاعي جهاد نوم ورکوي نو چې کله جهاد دفاعي شي دا بیا فرض عین نه وي؟ ایا داسې جهاد چې فرض عین وي دې کی بیا د دښمن سره مذاکرات او جوړ جاړی ته جواز میلاویږي؟

آیا دوی به بیا تاته ملک پرېږدي او ته به پکې شریعت قائموې! او که نه هغوی به اسلام قبلوي ، د کفر او ردت نه به توبه وباسي که څنګه؟

د تحریک مشر بیا وایي :

غواړو نړیوالو ته دا هم روښانه کړو چې مونږ کومه بهرنۍ اجنډا نه لرو ، مونږ د پاکستان د جنرالانو او واکمنانو د ظلمونو په وړاندې له ځانه د دفاع جګړه پیل کړې ده .

## ⟸ زمونږ تبصره :

نړیوالو ته خپله صفایي دا په څه دلیل دی؟ ددې خو ښکاره همدا مطلب دی چې تاسې ته ستاسې د کفر ازادي ده ، تاسې ته ستاسې د باطلو معبودانو د عبادت او د الله سره شریکان جوړول جایز ګڼو، که تاسې په چین کې آیغور مسلمانان قتلوئ که روسیه د ماورالنهر اشغال همداسې جاري ساتي او په عراق او شام کې مسلمانان قتلوي او که اسرائل د امریکا په مشرۍ د فلسطین مسلمانان وژني ، او که د نړۍ په هر ګوټ هرچرته کفار مسلمانان وژني ، نو د دوی ورسره کار نشته چې څه کوئ نو ښۀ کوئ، ځکه که ددې دا مطلب نه وي نو بیا نړیوالو کفري ملتونو ته ددې صفایي مطلب څه دی دا دې تحریکي شورا واضح کړي او بیا دې ښۀ سوچ سره دا هم ووایي چې ایا داسې کس د خلافت سره بیعت کولی شي؟ او که بیعت ونه کړي نو بیا به خلافت حق نه وي!؟ د تحریک مشر د کفري ملتونو د رضا کولو او د ځان نه د خوشحالولو په پار مزید لیکي: د جولایي په لسمه نېټه ملګرو ملتونو په یوه راپور کې پر تحریک طالبان پاکستان تور ولګاوه چې د افغانستان خاوره د پاکستان پر ضد کاروي ، او القاعده دوی ته روزنه ورکوي او مالي ملاتړ یې کوي چې په مټ یې دوی په پاکستان کې بریدونه ترسره کوي دا تور هم ولګول شو چې تحریک طالبان پاکستان په پاکستان کې د افغانانو له افرادي قوت څخه استفاده کوي او امارت اسلامي تي تي پي ته اسانتیاوې برابروي ، د دوی دا

تورونه نوي نه دي بلکې په وار وار يې ورته تورونه لګولي دي چې هر ځل مونږ رد کړي دي او ثابته کړې مو ده چې دا ټول تورونه بې اساسه دي او نن يې يوځل بيا هم په کلکه ردوو .

زمونږ تبصره : عجيب مشر او عجيب جهاد او که ووايم چې عجيب اسلام او عجيب ايمان نو هم به مناسب وي! د وطنيت عقيده او د بين الملل په أصولو يې د ايمان راوړلو لويه نښهٔ داده چې د افغانستان خاورې نه يې خپل استعمال غلط وګاڼه ، بيا بله تعجبي خبره دا چې دوی يو طرف ځان د هبة الله په بيعت کې ګڼي خو بل طرف بيا د امارت په شمول د القاعده نه چې دا هم د هيبة الله په بيعت کې ده د هغې نه يې نه تنها ملل ملحده ته خپل براءت اعلان کړ، بلکې د هغوی سره تعاون او هماهنګي يې په ځان يو تور او الزام وګاڼه!

ايا د تحريک کشران ندي خبر چې ملګري ملتونه د اصلی کفارو مجموعې ، پارلمان او محکمې ته ويل کيږي نو هغوی ته خپله صفايي او وضاحت څه معنا لري ايا دا د دوی په اصولو او قوانينو ايمان راوړل نه دي؟ ايا يو کس چې ځان ته مسلمان وايي هغه ته دا کار جايز دی؟ او که داسې وکړي هغه مسلمان کيدای شي؟ الله متعال په سورة النساء کې فرمايي : أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَن يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا .

ژباړه : آيا ته نه ګورې هغه کسانو ته چې هغوی دا دعوی کوي چې دوی ايمان راوړی په هغه څه چې تاته نازل شوې او په هغه څه چې له تانه مخکې نازل شوې بيا اراده لري ددې چې فيصله وروړي طاغوت ته سره له دې چې دوی ته امر شوی دی ددې چې دوی به کفر کوي په هغې باندې او شيطان اراده کړې ددې چې دوی ګمراه کړي په ګمراهۍ لرې سره .

نو د تحريک د مشر دا شکايت نور څه نه دي مګر يو فرياد او عريضه ده چې ده د ملګرو ملتونو ادارې ته يې وکړه لا حول ولا قوة .. راشئ مزيد صراحت يې ملاحظه کړئ!

د تحريک مشر وايي :

ملګرو ملتونو ته هم وايو چې د تورونو د لګولو پر ځای دې د دغو تورونو په اړه خپلواکه او عادلانه څېړنه وکړي .

زمونږ تبصره : الله اکبر ددې خلکو مخ او څټ نه پېژندل کيږي هم ځانونه مجاهدين ګڼي هم خپل وطني جنګ ته د جهاد نوم ورکوي او هم د خپل دغه جهاد تائيد او جواز د ملحدو ملتونو نه غواړي دا د تحريک د مشر فرياد او زارۍ دي چې ملحدو ملتونو ته يې کوي دا ښکاره دليل دی پدې چې د تحريک مشر ملګري ملتونه چې عبارت دي د ملل ملحده څخه دايې د يو رسمي قانون په توګه منلي ځکه خو ورته فيصله وروړي

او وايي چې ملګرو ملتونو ته هم وايو چې د تورونو د لګولو پر ځای دې د دغو تورونو په اړه خپلواکه او عادلانه څېړنه وکړي .

لاحول ولا قوة الا بالله!

د تحريک مشر وايي :

مونږ هېڅکله هم له با معنی خبرو اترو او مذاکراتو څخه ډډه نه ده کړې لکه څنګه چې مونږ د وسله والې جګړې په تکتيکونو ښهٔ خبر يو او پوهېږو همداشان د مذاکراتو په مېز د خبرو اترو او تفاهم له لارې د ستونزو په حل هم ښهٔ پوهېږو چې د عمران خان د واکمنۍ په مهال يې تېوله نړۍ شاهده وه .

⇐ **زمونږ تبصره :**

د تحريک مشر هم خپل وطني جنګ ته د دفاعي جهاد نوم ورکوي او حال دا که دا جهاد دفاعي شي نو بيا فرض عين ګرځي او بل لور ته بيا د هماغه چانه چې جهاد ورسره فرض عين ګڼي د مذاکراتو مطالبې کوي سبحان الله دا کوم دين او کوم شريعت دی؟ خو معلومه خبره ده چې دا هم لکه د خپل بادار افغاني طالب ملېشو د اسلام اباد ګدۍ خوبونه ويني نو ځکه خو د ټولو کفارو په شمول د امريکا د نظامي سترې هدې د مرتدو واکمنانو څخه يې مطالبه وکړه او ويې ويل چې په پای کې له ټولې اسلامي نړۍ او په ځانګړې توګه د قطر هېواد له واکمنانو او مذهبي مشرانو څخه غوښتنه کوو چې راشي او په پاکستان کې د روانې جګړې په اړه ازاده څېړنه وکړي او وګوري چې

آيا دا پردی جګړه ده چې پر موږ را تپل شوې او مونږ ددې حکمرانانو له ظلمونو څخه مجبور شوي يو چې د دوی په وړاندې مو دفاعي جګړه پېل کړې ده او که واقعاً مونږ ترهګر يو؟

## ⟸ زمونږ تبصره :

دا دی جناب مفتي نور ولي چې دې وينا سره يې بيا د تحريک جنګيالو ته يو قسم پيغور ورکړ او د هغوی د جهاد او استشهاد خوبونه يې هسې په خوړ باندې لاهو کړل ځکه چې برملا يې اعتراف وکړ چې دا په مونږ راتپل شوې جګړه او جنګ دی چې ملامت پکې مونږ نه ، بلکې زمونږ مخالفين دي نو د نړی کفار دې راجمعه شي لکه څنګه يې چې داشرف غربي نه افغاني طالبانو ته واک نقل کړ داسې دې د موجوده پاکستاني حکومت نه واک مونږ پاکستاني طالبانو ته رانقل کړي ځکه مونږ ترهګر نه يو يعني زمونږ جنګ د شريعت دپاره نه دی ، زمونږ جنګ د مسلمانانو د عزت دپاره نه دی ،زمونږ جنګ د پاکستان د وضعي نقشې د حدودو نه بهر د هيڅ کافر سره نه دی، بلکې زمونږ جنګ د پاکستان په حدودو کې داخل د پاکستان د شتمنۍ او د اسلام اباد د ګدۍ حاصلولو دپاره دی ، لاحول ولا قوة الا بالله .

دا شوې د تحريک طالبان پاکستان د مشر مفتي نور ولي محسود کفري ملتونو ته د خپل سپيناوي بعضې هغه برخې چې تاسې ملاحظه کړې چې ښکاره د الله رب العالمين د راليږلي شريعت او نبوي منهج سره په ضد او ټکر کې دي، نو اوس دې لوستونکي ووايي چې ايا داسې انسان چې په وطني جنګ بوخت وي او د کفری ملتونو اصولو ته

ژمن ، د هغې منونکی او په هغې رضا لرونکی وي داسې کس به د خلافت سره بیعت وکړي؟ او که بیعت ونه کړي نو دا خلافت او خلیفه به بیا باطل وي ولې چې د تحریکي شورۍ په قول د پاکستان د تحریک طالبان مشر ورسره بیعت نه دی کړی؟

دغه ډول تحریکي شورۍ چې د نورو کومو ګوندونو او د هغوی د مشرانو څخه یادونه کړې چې فلاني مشر بیعت ونه کړ او فلاني ونه کړ نو ددې خبرې ځواب دا دی چې پدې بیعت نه کولو سره هغوی تاوان ونه رساوه مګر خپلو ځانونو ته بل دا ټول په وصف او منهج کې د تحریک د مشرمفتي نورولي نه کم ندي نو لهذا د خلافت سره بیعت کولو امید د دوی نه داسې دی لکه د شګوګل نه د اوبو امید کول او سره له دې چې نن الحمد لله دا ټول مذکور افراد کلعدم دي او په همدې منطقو کې اسلامی خلافت سره بیعتونه شوي دي او ښهٔ په پراخه عالمي سطحه باندې جهاد د کفارو سره شروع دی تاسې وګورئ فلیپین دی که مصر او یمن دی ، ساحل دی او که مالي ، صومال ، غرب افریقا ده او که وسط افریقا ، پاکستان دی , هند او که خراسان دلته الحمدلله د خلافت مجاهدین ښهٔ پریمانه موجود دي الله متعال د خپل دین د نصرت دپاره خلک پیدا کوي هیڅاته خپل دین محتاج نه ګرځوي.

نو لهذا د تحریکي شورۍ دې خبرې ته چې وایي د " بغدادي صیب تش په نوم خلافت باندې اهل الشوکة جهادي رهبران ، نړیوال جهادي علماء او مخور مسلمانان متفق نه دي " نو دې خبرې ته هیڅ حاجت او ضرورت پاتې نشو والحمد لله رب العالمین .

تحريكى شورى ليكي :

همدغه راز امام ذهبي رحمه الله د المنتقي من منهاج الاعتدال په٥٣ صفحه کې وايي :

**و مذهب اهل السنة انّ الامامة تنعقد عند هم بموافقة اهل الشوكة الذين يحصلبهم مقصود الامامة وهو القدرة و التمكين .**

ژباړه : د اهل السنة و الجاعت مذهب دا دى چې خلافت او امامت د اهل الشوكة په موافقې سره قائميږي چې د هغوى په موافقت سره د امامت مقصود چې قدرت او واک دى حاصليږي .

او اهل الشوكة و القدرة په مجاهدينو کې له شرقي ترکستان څخه نيولې بيا تر

مغرب اسلامي پورې يعني اندلس پورې له بغدادي صيب سره موافق نه دي . ص ٢٦

⟸ **ځواب :**

د ذهبي رحمه الله د عبارت معنا او مقصود واضح دى هغه خلک چې د هغوى په موافقې د مسلمانانو موافقه راځي ، د هغوى په بيعت خليفه ته قدرت او تمکين حاصليږي او بعينه همداسې د بغدادي تقبله الله سره وشو چې اهل الشوکه ورسره بيعتونه وکړل د کومو چې مخکې يادونه وشوه نو د هغوى په انقياد سمع او طاعت رب کريم د بغدادي خلافت د ساحل نه تر افريقا او آن تر خراسانه وغځاوه نو ذهبي رحمه الله خو د ملاعمر ، د تحريک طالبان د مشر او د ظواهري نومونه ندي اخستي چې د دوى بيعت به خليفه خليفه کوي که داسې نه وي نو نه خليفه ،خليفه دى او نه يې خلافت ، خلافت دى!

بیا دلته اړین بولم چې لوستونکو ته د اهل الشوکه معنا واضحه کړم :

شوکة لغت کې ازغي ته ویلي شي او په شرعي اصطلاح کې دا قوة جنگ او زور ته ویلي شي اطلاق یې په قدرت لرونکو او جنگ کونکو افرادو باندې کیږي . لکه الله متعال په سورة الاٴنفَال ۷ نمبر ایت کریمه کې فرمایي:

**وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ وَيُرِيدُ اللَّهُ أَن يُحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكَٰفِرِينَ .**

ژباړه : هغه وخت یاد کړئ چې الله ستاسې سره وعده کوله چې له دوو ډلو څخه به یوه تاسې ته په لاس درشي ، تاسې غوښتل چې غیر جنگ کونکي ډله دې په لاس درشي ، خو د الله اراده دا وه چې په خپلو فیصلو سره حق ، حق ثابت کړي او د کافرانو ستنه وباسي .

علامه قرطبي رحمه الله د غیر ذات الشوکة معنا کوي فرمایي :

**أى تودون أن تظفروا بالطائفة التي ليس معها سلاح ولا فيها حرب .**

ژباړه : یعنې تاسې غوښتل چې تاسې په هغه ډله برلاسي شئ چې هغوی سره اسلحه نشته او نه په هغوی کې جنگ کونکي شته . تفسیر القرطبي ۳۶۹/۷ .

نو د اهل الشوكة معنا معلومه شوه چې دا هغه افراد دي چې د هغوی په خبره او امر خلک راپورته کیږي ، جنګونو او قتالونو ته حاضریږي او الحمد لله همدا ډول کسانو د بغدادي تقبله الله تعالی سره بیعتونه وکړل او ډلې ډلې خلک ورسره شاته ودرېدل .

او که خامخا تحریکي شورى له خپل عادت څخه نه ګرځي او د ټولې نړۍ اهل الشوکه مراد کوي نو بیا عرض دی چې معاویه رضي الله عنه او د هغه سره ولاړ ملګري ټول اهل الشوکه وو پوره شام ورسره ولاړ و، بلکې ابن کثیر په البدایه والنهایة ۲۸۰/۷ کې ذکر کړي چې بلاد الروم دغه ډول ساحلونه اوجزیرة د قبرص ، د عربي جزیرې بعضې ښارونه لکه رها ، حران ، قرقیسیا او داسې نور ټول د معاویه رضي الله عنه کنټرول کې وو ، دغه ډول د مصر لوی ښار چې خربتا نومېده دي کې یزید بن حارث المدلجي و چې د ابن کثیر و غیره مؤرخینو په تحقیق لس زره کسان ورسره ولاړ وو دوی هم د علي رضي الله عنه سره بیعت ونه کړ چې دا یقني اهل الشوکه وو نو چې د دوی په نه بیعت کولو د دوی په نه رضایت د علي رضي الله عنه خلافت ساقط نشو نو د تحریک مذکور افراد خوارکیان خو هسې هم د طاغوت په غیږو کې ناست دي دوی ته اعتبار ورکول داهسې د عارفانه تجاهل مظاهره ده فقط .

تحریکي شورى لیکي :

امام ذهبي بیا په ۵۴۵ صفحه کې وایي د خلافت د صحت لپاره د جمهورو اهل الشوکة موافقه شرط دي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

عليكم بالجماعة فان يد الله على الجماعة وعليكم بالسواد الاعظم و من شذ شُذّفى النار.

ژباړه : د مسلمانانو له تولي سره لازم اوسئ ، ځکه د الله تعالى مرسته او كومک له جماعت سره وي او په تاسې باندې د سواد اعظم د مسلمانانو د ستري ډلې ملګرتيا لازمه ده ، ځوک چې ځانته شو نو ځانته به شي په اور کې .

حال دا چې د بغدادي صيب تش په نوم خلافت باندې جمهور مسلمانان او سواد اعظم خو څه چې لسمه برخه يې هم پرې نده متفق او نه وربانديې اهل القدرة و الشوكة متفق دي ، صـــ٢٦ .

الجواب بعون الله الوهاب : د جمهور اهل الشوكه موافقت يا د جمهورو اهل الحل والعقد موافقت دا خو كه ميسر شي نور على نور خبره ده افضليت کې يې هيڅ اختلاف نلرم خو په شرطيت کې يې وايم چې دا بلكل شرط نه دی ځکه كه دا شرط ومنل شي نو مخکني راشده خلافتونو کې يو هم پدې شرط نه موجودیږي تحريكي شورى په يو اودس نه ده كله وايي د امت اتفاق ، كله وايي د اهل الحل والعقد اتفاق او كله وايي جمهور اهل الحل والعقد خو صحيح خبره داده چې په دې دريو واړو کې يو قول هم شرط نه دی ځکه چې د خلفاء راشدينو يو خلافت هم پدې کې په يو شرط نه دي قائم شوی .

لكه خپله ذهبي رحمه الله همدې عبارت پسې متصل فرمايي :

**ثم إجتماع الأمة على بيعة أبي بكر أعظم من إجتماعهم على بيعة علي فإن ثلث الناس أو أرجح لم يبايعوه وقاتلوه وخلق من الكبار لم يقاتلوا معه واعتزلوا فإن جاز القدح في الإمامة بتخلف بعض الأمة عن البيعة كان القدح في إمامة علي أولى بكثير .**

ژباړه : بيا اجتماع د امت په بيعت د ابوبکر دا لويه وه په نسبت سره اجتماع ته په بيعت د علي ځکه چې دريمې برخې او يا زيات له هغې بيعت ونه کړ د هغه سره بلکې وجنګېدل او ډيرى لويو لويو خلکو ورسره جنګ ونکړ او ترېنه يو طرف ته شول نو که چرته قدح په امامت د هغه (ابوبکر) کې جايز شي پدې چې د امت بعضو کسانو يې بيعت نه وروسته والى کړى نو بيا خو دغه قدح په امامت د علي کى ډېره اولى ده چې ومنل شي ، منهاج الاعتدال صـــ ۵۷۴ .

نوګوره معلومه شوه چې دلته همدا مراد دى چې د بعضو موافقت دا د جمهورو موافقت دى ځکه چې ابوبکر سره ړومبى محدود خو کسانو اهل الشوکه وو بيعت وکړ بيا دا بيعت واجب شو په ټول امت باندې او دا بيا د ټول امت د اتفاق نه تعبير شو ترقيامته او دا بحث بار بار تېر شو ، اوس راځو او د تحريکي شورى ذکر کړو احاديثو ته دا احاديث اصلاً ذهبي رحمه الله ميزان الاعتدال کې ذکر کړي نو تحريکي شورى د ذهبي رحمه الله د خبرو ماحصل د خپل مدعا موافق په پښتو کې ذکر کړى خو دا احاديث

يې هو به هو په عربي الفاظو نقل کړي پدې ګمان چې ګويا د دوی دلايل دي او مونږ يې خلاف کړی خو راشئ وګورئ چې ددې احاديثو مقصد څه شی دی .

اول خو دا حديث چې " عليکم بالجماعة او يد الله على الجماعة " دا حديث په مختلفو الفاظو سره نقل دی او صحيح حديث دی خو دا حديث د تحريکي شورى تائيد نه بلکې ترديد کوي ځکه د جماعت نه مراد په اتفاق د محدثينو خلافت دی لکه په حديث د صحيح مسلم کې د حذيفه رضي الله عنه تير شو چې هغه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : **{ تلزم جماعة المسلمين وإمامهم ، فقلت : فإن لم تكن لهم جماعة ولا إمام؟ قال: فاعتزل تلك الفرق كلها ، ولو أن تعض على أصل شجرة حتى يدركك الموت وأنت على ذلك }.**

ژباړه : ته د مسلمانانو جماعت او د هغوی امام لازم ونيسه يعني د دوی سره جماعت کې اوسه...الخ نو ګوره دلته دې حديث کې د امام نه مراد خليفه او د جماعت نه مراد خلافت دی خو دلته تحريکي شورى عجيبه چالاکي کوي دليل د خلافت په صف کې د داخلېدو ذکر کوي او په خپله بيا له خلافت څخه سرغړونه کوي او بې ځايه کوشش کوي چې ځانونو ته د خلافت نه وتل جايز وګرځوي.

ځکه چې ذهبي رحمه الله دغه حديث خلافت سره د بيعت او د خليفه د طاعت په پار ذکر کړی خو تحريکي شورى دېته هيڅ فکر نه کوي بل دلته تحريکي شورى کوشش دا کړی چې حديث کې د جماعت نه مراد سواد اعظم واخلي ځکه چې وروستي حديث

کې سواد اعظم ذکر دی نو دوی دا باور ورکوي چې گویا د حدیث نه مو په مخالفینو استدلال وکړ پدې چې جمهورو اهل الشوکه او اهل الحل باندې دادی نبي صلی الله علیه هم یو قسم امر کړی!!

نو لوستونکي دې باخبر اوسي دا حدیث چې د سواد اعظم ذکر پکې راغلی دا ثابت نه دی ضعیف دی امام حاکم رحمه الله سره ددې چې متساهل دی په تصحیح د حدیث کې هغه فرمايي : خالد بن یزید القرني هذا شیخ قدیم للبغدادیین ، ولو حفظ هذا الحدیث لحکمنا له بالصحة.

یعنې دې حدیث باندې مونږ حکم د صحت نشو کولی او که بالفرض دا صحیح هم شي بیا به هم د سواد اعظم نه مراد کثرة د ډلې نه، بلکې عظمت د ډلې مراد وي لکه امام اعظم ، او دا نه وي مگر خلافت ځکه چې دا حق جماعت وي ولو که مخالفین یې ډیر هم وي لکه عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي : **إنما الجماعة ما وافق طاعة الله ، وإن كنت وحدك .**

ژباړه : بې شکه جماعت هغه دی چې د الله د طاعت سره موافق وي اگر که ته یو کس هم یې شرح أصول اعتقاد أهل السنة والجماعة للالكائي 1/ 109 .

دغه ډول علامه عبد الرحمن بن إسماعیل چې په ابو شامه سره معروف دی په 665 هـ کې وفات شوی فرمايي: " **وحیث جاء الأمر بلزوم الجماعة فالمراد به لزوم الحق واتباعه ، وإن كان المتمسك به قليلا ، والمخالف كثيرا ؛ لأن الحق الذي كانت عليه**

**الجماعة الأولى من النبي صلى الله عليه وسلم ، وأصحابه رضي الله عنهم ، ولا تنظر إلى كثرة أهل الباطل بعدهم .**

ژباړه : او کوم چې امر راغلی په لازم نيولو د جماعت نو مراد ددې نه لازم پاتې کېدل دي د حق سره او اتباع د هغې ده اگر که عمل کونکي ورباندې کم وي او مخالفين يې ډير وي ځکه حق هغه دی چې په هغې ړومبنی جماعت ولاړ وو د نبي صلی الله عليه وسلم او د هغه صحابه کرامو رضي الله عنهم او مه گوره ته د باطل پرستو کثرت ته د دوی نه بعد . الباعث على إنكار البدع والحوادث لأبي شامة ، ص 34 .

او الحمد لله د بغدادی د خلافت حقانيت نړۍ وليده چې په اعلان سره يې د کفارو پوزې په خاورو خړې کړې حدود يې مکمل نافذ کړل ، جزيه يې مقرره کړه ، سرحدات يې محفوظ کړل خود ساخته بادړې او حدود يې ونړول د وينځو او غلامانو احکام يې جاري کړل ولايات يې اعلان کړل د کفارو او ټولو انواعو مرتدينو سره يې نړيوال جهاد اعلان کړ چې ترننه بحمد الله وتوفيقه جاری دی ،خو ددې برعکس تحريکي شورى د خپلو ذکر کړو اهل شوکه افرادو يو حد راوښايي چې دوی نافذ کړی وي ، د ظواهري حال يې وکتو نن دې د القاعدې حال وگوري کوم طرف روانه ده د امارت حال ورباندې پټ نه دی، چې د ځمکې په مخ د هيڅ کافر سره دښمني نلري ، د تحريک پاکستان د مشر مفتي نور ولي درخواست ليک مو ملاحظه کړئ چې عالم کفر ته يې کوم درخواست

او له هغوی يې کومې مطالبې کړېدي چې یوه له هغې څخه د انسان ردت ته کافي کیږي والعیاذ بالله تعالی .

نو که د خلافت سره داسې خلک بیعت ونه کړي نو د بغدادی تقبله الله او د هغه د اعلان کړې خلافت قدر ، عظمت او عزت کې هیڅ کمی نه راځي والحمد لله رب العالمین نو د تحریکي شوری دا خبره چې د بغدادي صیب تش په نوم خلافت باندې د داسې مشرانو هیڅ توافق نشته چې هغه په مجاهدینو کې رهبران، مشهور علماء ، او د جهادي او فوځي جبهاتو مشران او قوماندانان دي ، دا هغه خلک دي چې د کفر او طواغیتو له سلطې څخه د اسلامي امت د خلاصون لپاره يې نه ستړې کیدونکې هلې ځلې کړې ، ص۳۰ .

نو دا خبره درسته نه ده ځکه که دې خلکو یقیناً دا هر څه د اسلام او مسلمانانو لپاره کولی نو نن به یې د اسلامي خلافت په مقابل کې د نړۍ په کفري ملتونو ایمان نه راوړلی او د وطنیت په جال کې به ګیر نه وای او خپل جهاد نه به یې تعبیر په ځان د تیل شوي جنګ او جګړې څخه نه کولی .

تحریکي شوری دې لرې نه ځي چې لاړشي او د جبهة النصرة له حاله ځان خبر کړي بلکې خپل کورکې دې د خپل مشر مفتي نورولي محسود خط بار بار وګوري او د الله د شریعت محکمې ته دې پیش کړي خپله به ومني چې تور تور او سپین سپین وي .

## *تحريکي شورا ته ځواب ځلورمه برخه*

تحريکي شورى ليکي : دا چې بغدادي صيب خليفه نه دى ،بلکې د خپلې ډلې جهادي مشر دى . دريمه وجه يې دا ده چې د ده بيعت د خلفاء راشدينو له بيعت او خلافت سره ښکاره مخالف دى ځکه چې د خلفاء راشدينو په بيعت او خلافت باندې ټول امت او يا جمهور امت خوښ او متفق و او د بغدادي تش په نوم خلافت باندې نه عام امت او نه د هغوى جمهور اوجهادي امت او نه د جهادي امت اکثريت متفق دى ، صـــ٣٠ .

⟸ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

تحريکي شورى همدا رته شروع کړې چې نه جمهور متفق دي ، نه ټول امت متفق دى ، کله وايي نه ټول اهل الحل متفق دي او نه جمهور اهل الحل متفق دي ، ټول زور يې په همدې لړولى خو مونږ مخکې بار بار ځواب وفرمايه چې دا د خلافت د انعقاد لپاره شرط د صحت نه دى ګڼي مخکې کوم خلافت دوى ښودلى شي چې امتورباندې بالکليه اتفاق کړى وي او بيخي مخالفين ونلري ، نو که د مخالفينو مخالفت ته اعتبار ورکړى شي نو بيا خو يو خلافت هم نه صحيح کيږي او بالخصوص ننى زمانه کې چې د خلکو نه د خلافت مفهوم او معنا بيخي ورکه ده او د خو پيړيو را په دېخوا اکثره برخه د امت د طاغوتي او کفري نظامونو سره اشنا شوي او د خواهش موافق ژوندون او زندګي يې تېره کړې دوى به ځنګه او په کوم قناعت داسې زر په يو خلافت متفق شي نو که متفق نه شي دا خلافت به بيا خلافت نه وي ، د مهدي سره په خلافت کې به دا

امت ټول په ټوله متفق شي؟ او که نه شي نو د دوی عدم اتفاق به د مهدي خلافت ته ضرر ورسوي؟

تحریکي شوري لیکي :

ځکه په نړیواله سطحه چې څومره لوی لوی جهادي ډلې دي چې په لکونو مجاهدین او ملاتړي لري ، هغه ورسره متفق ندي ، بلکې دا فقط خپلې جهادي ډلې خلیفه اعلان کړی چې مخکې هم د دغې ډلې امیر و ، صـــ۳۰ .

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

مونږ مخکې هم ددې یادونه وکړه چې تحریکیان په یو اودس ندي  ګوره دلته وايي چې دا د خپلې جهادي ډلې امیر و ، دغه ډؤل په ۴۳صـ کې لیکي  هو هغه د نورو هغو په څېر د یوه جهادي ګوند امیر دی چې په اوسنیو شرایطو کې د اسلام لپاره هلې ځلې کوي .

خو بل طرف بیا د همدې تحریک دریځ دا هم دی چې دا خلافت د خوارجو خلافت دی لکه د تحریک یو ملا چې د دوی ترمنځ د شیخ خالد په نوم یادیږي د هغه بیان تحریک رسمي شایع کړی چې دا خوارج دي او خلافت یې د خوارجو دی

خو دلته بیا تحریکي شوری همدې د خوارجو مشر ته جهادي رهبر او د اسلام دپاره هلې ځلې کونکی وايي!! ډېره د تعجب وړ او د ښکاره تضاد مظاهره یې نده کړې؟

ړومبی تحریک ته پکار دي چې خپلو کې متفق شي او بعد له هغې بیا خپل دریځ اعلان کړي ځکه دوی لا پخپله پدې ندي توانیدلي چی په موجوده اسلامي خلافت د خپل طرف نه رسمي او قطعي حکم ولږوي له دې بعد دې بیا نور بحث وکړي.

له دې وروسته بیا تحریکي شورى دا بحث چیړلی چې معاویه رضي الله عنه د علي رضي الله عنه سره جنګ او مخالفت د خلافت په اساس نه کاوه چې ګویا هغه د خلافت مطالبه کوله بلکې دا یې د عثمان رضي الله عنه د قاتلینو د قصاص د مطالبې په اساس کولو او دا زور تحریکي شورى ددې لپاره لږولی چې دا ثابته کړي چې د علي رضي الله عنه سره د معاویه جګړه په خلافت نه وه ، بلکې جګړه په بل څه وه نو ګویا چې معاویه رضي الله عنه هم د هغه خلافت منلو  او دا ددې لپاره وایي چې ثابته کړي چې امت د علی رضي الله عنه سره هم په خلافت کې متفق و خو جګړه په بل څه وه .

نو ځکه تحریکي شورى وایي له دې نه معلومه شوه چې معاویه رضی الله عنه د حضرت علي رضی الله عنه په خلافت او امامت قانع و او بیعت ته هم تیار و ، خو ځنډ او اختلاف یې له دې امله و، چې هغه پدې ګمان و، چې د عثمان رضی الله عنه قاتلینو د علي رضی الله عنه په صفونو کې پناه اخستي ، معاویه رضی الله عنه پدې نظر و ،چې باید په بیره غچ ترې واخستل شي او د حضرت علي رضی الله عنه رایه دا وه چې لومړی دې ګډوډي له منځه یووړل شي چې کله کراري شي استحکام راشي بیا به د عثمان رضی الله عنه له قاتلانو څخه قصاص واخلو  صـــ ۴۰ .

## ⇐ الجواب بعون اللّه الوهاب :

دا بازار تيزي ده د تحريکي شورى چې کوي يې د على رضي الله عنه سره بيعت کې تاخير صرف معاويه رضي الله عنه نه، بلکې د مصر مشهور ښار اوسيدونکو هم وکړ،چې خربتا نوميده لس زره کسان وو او مشري يې يزيد بن حارث المدلجي کوله کما في البداية لابن کثير ، دغه ډول خپله مدينه کې ېې شمېره صحابه کرامو بيعتونه ونه کړل کوم چې خپله تحريکي شورى ابتدا کې د ابن خلدون په حوالې سره هم ذکر کړي دي .

دغه ډول که صحيح خبرنه وشي نو جمهورو صحابه وو د علي رضى الله عنه سره بيعت ندى کړى .

امام ابن حزم الاندلسي المتوفى ٤٥٦ هـ فرمايي :

**وأما بيعة علي فإن جمهور الصحابة تأخروا عنها إما عليه وإما لا له ولا عليه وما تابعه فيهم إلا الأقل سوى أزيد من مائة ألف مسلم بالشام والعراق ومصر والحجاز كلهم امتنع من بيعته .** ژباړه : بهر حال کوم چې بيعت د علي سره و، نو جمهورو صحابه وو ددې بيعت نه وروسته والى کړى يا دده مقابل کې بيعت کړى او يا يې نه دده سره کړى او نه يې د نورو سره او نه وو تابع شوي پدې بيعت کې مګر کم خلک او د يو لاک خلکونه زيات مسلمانان به شام ، عراق ، مصر او حجاز کې وو چې ټولو دده د بيعت نه ځانونه بند کړي وو .

١٢٠/٤ الفصل في الملل والأهواء والنحل .

الغرض : دا يقيني خبره ده چې د معاويه رضی الله عنه او علي رضي الله عنه ترمنځ د اختلاف سبب او باعث هغه همدا قضيه د عثمان رضي الله عنه وه خو دا خبره غلطه ده چې معاويه رضي الله عنه علي رضی عنه په امامت او خلافت منلی و، بلکې دايې ورته شرط ايښی و، چې ته به فوراً بدله اخلې ،نو زه دې منم که نه يې اخلی نو بيعت درسره نه کوم، ددې همدا معنا ده چې د خليفه په صفت دې نه منم.

او دغه ډول د تحريکي شورى دا خبره هم غلطه ده په صـــ ۴۲ کې يې د بعضو معاصرينو عبارات نقل کړي چې وايي علي رضی الله عنه په بيعت باندې مشران صحابه کرام ، مهاجرين او انصارټول متفق وو او ټولو اسلامي ښارونو او ملکونو د هغه خلافت ته غاړه کېښودله نو دا خبره صحيح نه ده ،ځکه تاسې پورته د ابن کثير او ابن حزم رحمه الله حوالې وليدلې چې ددې برعکس وې .

بيا د تحريکي شورى بې اودسي له دې معلومه کړئ چې ابتدا کې په مد او شد سره په صـ ١٥ صـ١٦ کې د تاريخ ابن خلدون او د نهاية الأرب په حوالوسره خپله د ړومبي مذهب په تفصيل کې همدا ثابت کړي چې صحابه او مسلمانان د علی رضي الله عنه په خلافت متفق نه وو خو دلته ترې ېبرته دا مذهب او خپله مخکنۍ خبره له ياده وتلې ده دېته وايي چې دروغگو حافظه ندارد .

نو د دومره لوی اختلاف څخه انکار کول دا کوم انصاف دی بيا دا چې کله يې د خپل خواهش موافق شي مني يې او چې مخالف شي رد کوي يې بيا دا چې کومو اهل علمو

فرمايلي چې د علي رضی الله عنه خلافت هم لکه د ابو بکر او عمر رضي الله عنهما په اتفاق د امت اعلان شوی نو ددې سبب هم همدا دی چې اهل الحل والعقد پرېکړه کړې نو دا پرېکړه به د امت پرېکړه حسابيږي او پدې کې به مخالفينو ته هيڅ اعتبار نه وي ځکه چې حق خليفه و او د حق په جانب و، نو ځکه ترينه تعبير په اتفاق سره کيږي ، ګني داسې اجماع او اتفاق څوک په يو مساله پيش کولی شي چې هغې کې اختلاف نه وي موجود ځکه خو امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي:

**من ادعى الإجماع فهو كاذب وما يدريه لعل الناس اختلفوا .**

ژباړه : څوک چې د اجماع دعوی وکړي دا به درواغجن وي ده ته څه علم دی کيدای شي چې خلکو اختلاف کړی وي په هغه څه کې چې دا په کې داجماع دعوی کوي .
مسائل الامام أحمد صـــ ٣٩٠ .

همدا ډول د امام شافعي رحمه الله نه هم په جديده رساله کې نقل دي هغه فرمايي: **ما لايعلم فيه خلاف ، فليس إجماعا .**

ژباړه : هغه څه چې هغې کې د خلاف معلومات څوک نلري دا خو اجماع نده يعنې چې يو چاته د اختلاف علم نه وي او دعوه وکړي چې دې مساله باندې اجماع واقع ده ، نو دا اجماع نه شي کيدای . علامه احمد شاکر رحمه الله په نظام الطلاق صـــ ١٠٠ کی فرمايی : الإجماع الصحيح الذي تثبته الأدلة الذي لا يجوز لأحد خلافه هو الأمور المعلومة من الدين بالضرورة كلها وليس شيء غيرها يسمى إجماعا ، چی ددې مقصد او

معنا ښکاره ده چې د دين د ضروورياتو او معلومو امورو نه بغير په نورو مسايلو کې د قطعي اجماع دعوی دا غلطه ده .

خو ما مخکې هم ددې وضاحت وکړ چې په شريعت کې بعضې امور داسې دومره بديهي وي چې د بداهت په سبب هغه د امت اجماع او اتفاق تصورکيږي اگر که مخالفت کونکي يې هم موجود وي خو مخالفت کونکو ته اعتبار نه وي لکه د صحيحنو په صحت د امت د اجماع او اتفاق با وجود مخالفت هم موجود دی خو دې مخالفت ته اعتبار نشته .

نو مقصود ته راځو چې هغه د معاويه رضی الله عنه مخالفت او بيعت نه کول دي ،نو دلته دا خبره ضروري نه ده چې معاويه رضي الله عنه د خلافت مطالبه کوله او که نه يې کوله خو مهمه خبره هغه د علی رضي الله عنه سره بيعت نه کول وو، که هغه په هر شرط وو خو هغه بيعت ونه کړ او تر مرگه يې ورسره ونه کړ د تحريکي شورى دا چالاکي بې ځايه ده چې ليکي :

له دې نه معلومه شوه چې معاويه رضی الله عنه د حضرت علي رضی الله عنه په خلافت او امامت قانع و او بيعت ته هم تيار و ، خو ځنډ او اختلاف يې له دې امله و چې هغه پدې گمان و چې د عثمان رضی الله عنه قاتلينو د علي رضی الله عنه په صفونو کې پناه اخيستې .

نومونږ تحريکي شورى ته وايو  چې بيعت ته تيار و ولې يې ونه کړ؟ نو دا خو معلومه ده چې بيعت يې و نه کړ ددې همدا معنا ده چې على رضي الله عنه يې په امامتې سره ونه مانه ، نو چې ويې نه منلو بس دغه د بحث موضوع شوه بيا برابره ده چې هغه خلافت غوښتلو او که نه دا مهمه نه ده .

## ⟸ نو ددې نه دا څو خبرې څرګندې شوې :

١_ د علي رضى الله عنه سره بيعت کونکي ټول اهل الشوکه متفق نه وو خو بيا هم د على رضي الله عنه خلافت حق او هغه حق او واجب الاطاعة خليفه و، نو د تحريکي شورى دا خبره غلطه ده چې د ټولو اهل الشوکه اتفاق شرط دى.

٢_ د على رضي الله عنه خلافت ته د بعضو اختلاف ضرر ندى رسولى ولې چې هغه د څو کسه اهل الحل والعقد له لورې منتخب شوى و، نو شرعي خليفه و همداسي خلافت د ابوبکر بغدادي تقبله الله هم درواخله .

٣ _ معاويه رضي الله عنه که د على رضي الله عنه سره بيعت نه کولو او د هغه مخالفت يې کولو نو د علي رضي الله عنه په مقابل کې يې د بل کوم کافر ، مشرک او ملحد سره تعاون هم ندى کړى خو نن د تحريک طالبان په شمول ټول تنظيمونه چې د خلافت سره بيعت نه کوي او بيا سره ددې د خلافت مقابل کې د کفري او مرتدو اورګانونو سره پټ او ښکاره تحالفونه لري چې دا په هيڅ تحقيق کونکي پټ نه دي .

۴_ معاویه رضي الله عنه چې د علي رضي الله عنه سره بیعت نه دی کړی، نو چا په امت کې د علي رضي الله عنه په مقابل کې حق په جانب هم ندی ګڼلی اګر چې سبب د عدم بیعت یې اجتهادي و، خو ټول امت علي رضي الله عنه په حقه ګڼي . ابن تیمیه رح فرمایي : **وكان ترك القتال خيرا للطائفتين ، مع أن عليا كان أولى بالحق ، وهذا هو قول أحمد وأكثر أهل الحديث وأكثر أئمة الفقهاء ، وهو قول أكابر الصحابة والتابعين لهم بإحسان .**

ژباړه : او ترك د قتال دواړو ډلو ته غوره و ، خو سره له دې علي چې حق باندې و او دا قول د احمد او د ډیرو اهل حدیثو او د اکثرو فقهاؤ امامانو دی او دا قول د اکابرو صحابه او تابعینو دی ، منهاج السنة النبويه ۴۴۸/۴ .

ابن حزم رحمه الله فرمایي : **فصح أن عليا هو صاحب الحق والإمام المفترضة طاعته ومعاوية مخطئ مأجور مجتهد .**

ژباړه : پس صحیح دا ده چې بې شکه علي همدا د حق خاوند وو او هغه امام وو چې طاعت یې فرض کړی شوی وو او معاویه په خطاء و خو مأجور مجتهد و ، الفصل فی الملل والأهواء والنحل ۱۲۶/۴ .

نو تحریکي شوری ته حیاء پکار ده له دې چې ځان ته د معاویه رضي الله عنه عدم بیعت دلیل کی پیش کوي .

۵ معاويه رضي الله عنه چې بيعت نه كولو او كوم علت او عذر يې پېش كاوه هغه هم معلوم وو اګر چې ډېر مقبول هم نه و، خو د بغدادي د خلافت نه د براى نام يا تش په نوم تنظيمونو سرغړونه كې داسې عذر هم نشته نو بيا ولې دوى دليل كې معاويه پېش كوي .

ابن حزم الأندلسي رحمه الله د مقبول او غير مقبول تأويل يادونه كوي او بيا فرمايي :

**لكن مثل تأويل معاوية في أن يقتص من قتلة عثمان قبل البيعة لعلي ، فهذا يعذر ؛ لأنه ليس فيه إحالة شيء من الدين ، وإنما هو خطأ خاص في قصة بعينها لا تتعدى .**

**ومن قام لعرض دنيا فقط ، كما فعل يزيد بن معاوية ، ومروان بن الحكم ، وعبد الملك بن مروان في القيام على ابن الزبير ، وكما فعل مروان بن محمد في القيام على يزيد بن الوليد، وكمن قام أيضا عن مروان ، فهؤلاء لا يعذرون ، لأنهم لا تأويل لهم أصلا ، وهو بغي مجرد .**

ژباړه : لكن تأويل په شان د تاويل د معاويه داسې چې ړومبى دې د بيعت كولو نه د علي سره مخكې قصاص د قاتلينو د عثمان واخستلى شي نو دا معذور ګرځيدلى شي ځكه پدې كې د دين كوم شى د اصل ځخه نه ګرځي ، بلكې دا يو خاص خطاء وي په معينه قيصه كې نوروته نه غځيږي.

او چا چې د دنيا د حصول لپاره قيام کړی فقط لکه يزيد بن معاويه ، مروان بن حکم او عبدالملک بن مروان په پاڅون کې په خلاف د ابن الزبير او دغه شان څنګه چې مروان بن محمد د يزيد بن وليد خلاف قيام کړی و، نو دوی معذور نشي کيدلی ځکه چې دوی بيخي هيڅ تأويل نلرلو او دا خالص بغاوت وو ، المحلي بالآثار ۳۳۵/۱۱ .

بيا تحريکي شورى د دريمې مزعومه وجې خلاصه ذکر کوي ليکي:

خلاصه دا شوه چې د خلفاء راشدينو په خلافت باندې ټول امت متفق و، خو د بغدادي صيب تش په نوم خلافت دا ډول نه دی ، صـــ ۴۳ .

### ⇐ الجواب بتوفيق الوهاب :

لوستونکو تاسې مخکې ابحاث ملاحظه کړل ، د تحريکيانو متضاد خبرې او بې دليله دعوی مو وليدې نو لهذا که زمونږ په ژوند الله متعال د مهدي حفظه الله ورعاه خروج ميسر کړي، نو بيا به هم دا خلک دا دعوه وکړي چې دده خلافت د راشده خلافتونو غوندې نه دی ، حال دا صرف د بغدادي تقبله الله خلافت نه بلکې تاسې د امير المؤمنين عبدالله بن الزبير خلافت وګورئ أمويانو د هغه سره هم خپل مخالفت ښکاره کړی دده سره د حجاز والا وو بيعت وکړ او د معاويه بن يزيد بن معاويه سره شام والاو بيعت کړی و او په ډېره برخه د ځمکې د بنو أميه وو خلافت و سره ددې چې عبدالله بن الزبير ته ترننه چا تش په نوم خليفه او نه يې خلافت ته چا تش په نوم خلافت ويلی دی د معاويه بن يزيد په وفات سره بيا هم امويانو د عبدالله بن الزبير سره بيعت ونه کړ او

نه يې دا خوښهٔ وګڼله چې خلافت د دوی د خاندان نه بهر شي ،نو هغوی ړومبی مروان بن حکم سره بيعت وکړ او د هغه وروسته يې بيا د هغه د زوی عبد الملک بن مروان سره بيعت وکړ، دوی هر يو خپل خپل وخت کې ځانونه خلفاء او نظامونه خلافتونه ګڼل ،خو د امت ډېری اهل علمو ، مؤرخينو او محققينو دا خلفاء نه بلکې د بغاتو څخه شمارلي سره له دې چې افراد , ساحې ، علاقې او منطقې يې د عبدالله بن الزبير نه زياتې وې مخکې مو وليدل چې ابن حزم رحمه الله وفرمايل چې مروان او د هغه د زوی قيام په مقابل د ابن زبير کې مجرد بغاوت و، علامه عبد البر فرمايي : وروی عيسی ، عن ابن القاسم ، عن مالك، قال : ابن الزبير كان أفضل من مروان وكان أولى بالأمر من مروان ومن ابنه .

ژباړه : عيسی د ابن قاسم او هغه د مالک نه نقل کړی چې امام مالک رح وفرمايل ابن الزبير غوره و له مروان څخه او په خلافت کې د مروان او د هغه د زوی دواړو نه حق دار و، الاستيعاب ٩١٠/٣ ابن کثير رحمه الله د امير المؤمنين په وصف ياد کړي فرمايي : وهذه ترجمة أمير المؤمنين عبد الله بن الزبير ، البدايه والنهايه ٣٦٧/٨ .

دغه ډؤل علامه ابو المحاسن يوسف بن تغري المتوفی ٨٤٧ هم ورته د امير المؤمنين لقب ورکړی وګورئ النجوم الزاهرة فی ملوک مصر والقاهرة ١٨٩/١

دغه ډول ابوالفلاح عبد الحی بن احمد المتوفی ۱۰۸۹ هجـ په شذرات الذهب فی أخبارمن ذهب کې ورته امیرالمؤمنین ویلی دی نور هم بې شمیره محدثینو ، مؤرخینو او فقهاوو ده ته امیر المؤمنین او د ده مخالفت کونکو ته بغات ویلي دي .

تحریکي شورى لیکي

**څلورمه وجه :**

بغدادي صاحب شرعي خلیفه ندی ځکه چې : خلافت له هغه عمومي واک څخه عبارت دی چې د ټول مسلمه امت د دین او دنیا ساتنه کوي او بغدادي صیب ته دغه ډول واک څه چې لسمه برخه یې هم نه ده ورته حاصل... الخ صـ۴۳ .

⟸ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

پدې کې شک نشته چې خلافت تعبیر دی د داسې واک او اختیار نه چې د ټول امت د دین او دنیا غم او د تحفظ چارې په سنبالوي او د خپل وسع او توان موافق چې څومره کولی شي د مسلمانانو د دین او دنیا د تحفظ او ترقۍ کوشش کونکی به وي او الحمدلله رب العالمین بغدادي تقبله الله  او د هغه نه بعد راغلي ټولو خلفاؤ ته همدا توفیق ور په برخه کړ چې ترننه یې په همدې هدف خپل جهاد د یوې پولې او حد پورې ندی محدود کړی بلکې دا یې جاري ساتلی او همدا دعوى لري چې د ځمکې په مخ به د هر مسلمان عزت را واپس کوو او په هرځای کې یې په کفارو ماتم هم جوړ کړی او د هر ځای کافر هم ترینه په مرګوني ډار ډاریږي  چې دا خبره په هیڅ عقل والا انسان باندې پټه نه ده ځکه کفار او ملحدین د بل هیڅ ځانته مجاهد ویونکي بلکې د پوره تنظیم نه دومره

ډار نه کوي لکه څومره چې د اسلامي خلافت د يو ادنی مجاهد بلکې مناصر نه کوي!
ځکه دا د هرچا د وس کار نه دی چې د دنيا د ګوډ ، ګوډ کافر ته خپل دښمن ووايي او
په خلاف يې قدم پورته کړي .

مونږ ډېر د وخت باتوران وليدل چې د جهاد او استشهاد په نوم يې د مخلصينو ويني د
يو څو امريکايي ډالري کڅوړو او د هندي روپيو په بدله کې د وطنيت په جاهلي اعتقاد
وبهولې ، بار بار او وخت په وخت د ايمان بالطاغوت او کفر بالله کلمې تازه کوي بعضې
وايي امريکا خپله دښمنه نه ګڼو ، بعضې وايي د نن نه بعد په افغانستان کې جګړه پای
ته ورسېده ، د نن بعد د هيڅ چا سره د جنګ او جګړې اجنډا نه لرو،او بعضې يې بيا
ملل ملحده ته د ملګرو ملتونو په نوم خطاب کوي او د خپل طرف نه ورته د وطني
حدودو نه بهر د جنګي نظريې جواز په ځان يو تور او الزام ګڼي او بار بار ددې ترديد
وړاندې کوي لا حول ولا قوة الا بالله .

خو ددې برعکس بيا الحمد لله څنګه چې د خلافت وجيبه او مقصد دی او څنګه چې
د خليفة المسلمين وظيفه او مقصود دی په همدې هدف او لاره دا خليفه او خلافت
درومي او د هيڅ ملامت کونکي له ملامتيا نه ډارېږي .

الحمدلله د غرب ، افريقا ، وسط افريقا ، ساحل ، موزمبيق ، نايجر ، نايجيريا ، مالی و
غيره ولاياتو کې يې په لکهاوو مسلمانان د يو داسې ذلت نه د الله په نصرت او توفيق

سره نن بچ کړي دي  چې له مودو ، مودو د صليبي ټلوالې او د هغوی د مزدور مرتدو حکومتونو له لورې په سخت ذلت اخته شوي وو .

نن الحمدلله هلته د رب شريعت حاکم دی او مسلمان په داسې يو عزت او وقار سره خپله زندګي تېروي چې ددې يې تصور نه شو کولی وکل ذلک بفضل الله ونصرته والحمد لله رب العالمين .

همدا ډول ليبيا ، مصر ، يمن ، فليپين ، خراسان ، پاکستان ، هند ، تاجکستان وغيره ولايات دي چې په کفارو او مرتدينو د مجاهدينو چريکي حملې  د معسکراتو او د توحيد د داعيې د إحياء او د شريعت د حاکميت او د خلافت د نصرت نظريه پکې لله الحمد  په زور او شور سره روانه ده او لا په ترقۍ سره غځېږي چې همدا هاغه يره او خوف دی چې د نړۍ کفري ملتونو د مرتدو حکومتونو او د ساتل شوو بلاعمه وو نه کار اخستل فرض وګڼه او د خلافت خلاف يې هر قسم شبهې او وسوسې دبې علمه مسلمانانو اذهانو ته ورپيچکاري کړې ، دا شوه يوه خبره او که مراد د تحريکي شورى د واک او تسلط نه د ټولې دنيا تمکين او يا بالفور او بالفعل عاجلا غيرآجل فی الحال لا فی المآل د هر مسلمان تېوس کول او د هغه د ضرورياتو پوره کول او د هغه نه د تکليف لرې کول او هغه ته اساني ميسر کول مقصود وي ،نو دا خبره يې هم سخته خطاء او د تحريکي شورى د شرعي سياست نه د بليغې ناعلمۍ دليل دی ځکه داسې واک او تمکين خو نورخلفاء پرېږده بلکې د خلفاؤ په شمول د ټولو مسلمانانو امام او خليفه محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم ته هم الله نه وو ورکړی پاتې خو لا عام خليفه او امام

ځکه د الله نبي صلی الله علیه وسلم چې په مدینه کې د نبوي دولت او تمکین اعلان وکړ دغه وخت دده ټول واک په ټوله دنیا و؟

د الله نبي صلی الله علیه وسلم چې په دریمه لیلة العقبة کې د انصارو د نقباؤ سره مهاجرو ته په ځای ورکولو ، جهاد او دفاع د دار الاسلام باندې بیعت وکړ نو دغه وخت د الله د نبي صلی الله علیه وسلم سره څومره تمکین موجود و؟ دغه وخت خو لا یو لوېشت خاوره ورسره په لاس کې هم نه وه خو بیعتونه یې په هجرت او جهاد واخستل بلکې نور خولا پرېږده چې دغه بیعتونه ورسره انصارو کول نو دایې هم په پټه او د مکې د قرېشو نه ډېر په یره او خوف سره وکړل ، کعب بن مالک رضي الله عنه فرمایي : **فبتنا تلك الليلة مع قومنا في رحالنا حتى إذا مضى ثلث الليل ، خرجنا من رحالنا لميعاد رسول الله صلى الله عليه وسلم نتسلل مستخفين تسلل القطا .**

ژباړه : مونږ دغه شپه په خپلو پنډغالو کې وکړه تردې چې دریمه حصه د شپې تېره شوه نو مونږ د خپلو ځایونو څخه را ووتلو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د ملاقات د وعدې په سبب مونږ په یره پټ راوتلو ، پشان د راوتلو د قطا مرغه ، تاریخ بن جریر الطبري ۲/۳٦۰ .

نو وګورئ داسې حال دی او د الله نبي صلی الله علیه وسلم په هجرت او جهاد بیعتونه اخلي او د نبوي دولت او خلافت اعلان او تمکین ته تیاری کوي نور دلایل څه ته وایي؟

بیا د تحریک شورئ دومره فکر نه کوي چې د هجرت نه بعد په مکه کې ډېر مستضعفين مسلمانان موجود وو چې هغوئ ته مشرکو قريشو قسما قسم تعذيبونه ورکول د الله نبي صلى الله عليه وسلم د هغوئ واک او اختيار نلرلو داسې چې بالفور يې د هغوئ مرسته کړې وای داسې نور بې شمېره مسلمانان مختلفو امکنه وو کې د کفارو په شکنجو کې واقع شوي وو او د وخت خلفاؤ ورباندې واک او تسلط نلرلو اوس به د دوئ متعلق تحريکي شورئ څه ځواب کوي چې د دوئ خلافتونه صحيح نه وو؟ ولې چې تسلط او واک يې عام نه وو .

بیا د عثمان رضي الله عنه متعلق څه ځواب کوي چې دده واک او قدرت په ټوله اسلامي خاوره و، نو د هغه د قتل او د هغه خلاف د بغاوت او شرانګيزۍ نه څه ځواب کوي؟

د علي رضي الله عنه خلاف د معاويه رضي الله عنه او نورو زرګونو مخالفت کونکو نه څه ځواب کوي؟ دا مذکور خلفاء خو يو هم د پوره واک او تسلط خاوندان نه شو نو ايا اوس به تحريکي شورئ دوئ هم د خلافت مستحقين او خلفاء نه حسابوي؟ خو صحيح خبره همدا ده چې د واجباتو د امام څخه يوه وجيبه هغه هم دا ده چې دا به ځان د هرمسلمان امام او مسؤل ګڼي، د هغه د دين او دنيا د حفاظت او ساتنې به پوره کوشش کونکي وي او پدې کې به هيڅ قسم تقصير نه کوي ، د نبوی منهج پدې اصولو بيخي موافق لله الحمد والمنّة د دنيا نه راغلو مختلفو جهادي مشرانو کې اهل الحل والعقد په شام او عراق کې د ابوبکر ابراهيم بن عواد البغدادي تقبله الله تعالى د امام او خليفه په نصبولو سره خلافت اعلان کړ او د ځمکې په مخ حقيقي جهاد کونکو چې په همدې

پار يې خپل جهاد کولو چې رب مؤمنانو ته صحيح قريشی امام نصيب کړي او د الله په ځمکه په صحيح معنا سره شريعت نافذ شي او ټول مؤمنان د يو قيادت لاندې د ځمکې په مخ د قتال فی سبيل الله فريضه اداء کړي، دوی ورسره بيعتونه اعلان کړل او د ځمکې په مخ داسې ښار او ملک به نه وي چې هغې ځاې ځخه ورسره بيعت نه وي شوی او ددې خلافت منونکي هلته موجود نه وي ، همدارنګه په بې شميره اصلي دارالکفر مالکو کې د خلافت اتلوال بريدونه هم نړۍ مشاهده کړل او هر کافر ته يې کافر او هر کافر يې د خپل ګوزار هدف ګرځولی او د هيڅ زورور او کمزوري پروا نه کوي پدې کې .

دا دی لس کاله ووتل او تر ننه يې الحمدلله د قيادت او افرادو ترمنځ ځوک ادنی مخالفت او اختلاف نشي ثابتولی خو دا چې د خلافت اعلان د برای نام جهادي تنظيمونو بطلان راپه ډاګه کړ نو دوی هم لکه د دين د نورو دښمنانو قسما قسم تهمتونو او بهتانونو ځخه کار واخيسته او پدې باب کې چې ځنګه د امت بچې د خلافت د کاروان سره يو ځاې نه شي نو بلاعمه وو يې مختلف شبهات او وسوسې عوامو ته ور واچولې نو چې نورې ټولې حربې يې ناکامه شوې نو لکه د سيند وړو پشان يې دې ته لاس واچولو کله وايي چې دښمن کمول د الله د نبی وظيفه وه خو خلافت دې کار کې د الله د نبي د منهج نه ګوښ روان دی .

او کله به وايي چې د الله نبي صلی الله عليه وسلم په حديبيه کې ومنله چې نوي ايمان راوړونکو ته ځای نه ورکوم نو دا ټول يې د شرعي سياست نه تعبير کړل .

لکه تحریکي شورى لیکي:

حدیبیې په سوله کې نبي کریم صلى الله علیه وسلم دا سیاست غوره کړ چې له مکې څخه که څوک مدینې ته راځي او ایمان راوړي هغه ته په مدینه کې ځای نه ورکوم ، نو که یو جهادي محاذ د خپل توان په اساس خپل جهادي حدود اعلان کړي دا څه د کفارو تاکلي حدود منل نه دي بلکې د خپل توان مطابق یو مؤقتي سیاست دی ، ص۱۱ ، خو تحریکي شورى دومره علم نلري چې دا ډول فیصله صرف او صرف د الله د نبي صلى الله علیه وسلم پورې خاص وه امت کې هیچاته ددې قسم شرط اېښودو جواز نشته او نه څوک دا ثابتولی شي چې په تېر تاریخ کې ترننه چا پدې عمل کړی وي .

علامه ابن حزم رحمه الله حدیبې د سولې دغه شرط د رسول الله صلى الله علیه وسلم له ځانګړتیاوو څخه ګرځولی فرمایي : **ولا یحل لمسلم أن یشترط هذا الشرط ولا أن یفي به إن شرطه إذ لیس عنده من علم الغیب ما أوحى الله تعالى به إلى رسوله وبالله تعالى التوفیق .**

ژباړه : او هېڅ مسلمان ته جائز نه ده چې هغه دغه ډول شرط په سوله کې کیږدي او نه دا جائز دي چې وفا پرې وکړي ، که چیرته یې طی کړي ځکه چې ده سره د غیبو هغه علم نشته چې د کوم وحې الله خپل رسول ته کوله و بالله تعالى التوفیق . المحلى بالآثار ج۵/ص۲۶ .

او ددې شرط د خاصيت څو وجوهات دي :

١ ـ وجه دا ده چې صحابه کرامو هم دغه شرط ډېر عجيب وګاڼه خاصکر عمر رضي الله عنه دا دومر نا اشنا او عجيب وګاڼه چې فرمايي **والله ما شككت منذ أسلمت ، إلا يومئذ .**

ژباړه : قسم په الله ماشك نه وکړی چې کله نه مې اسلام راوړی و مګر په دغه ورځ .

٢ : وجه دا وه چې نبي صلى الله عليه وسلم د دغه شروطو تطبيقول او شرط کول د الله طاعت ګرځولی ، عمر رضي الله عنه فرمايي : زه چې ډېر حيران او فکرمند شوم نو پخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورغلم او ددې په اړه مې ورته فريادونه وکړل نو رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل **إني رسول الله صلى الله عليه وسلم ولست أعصيه .**

ژباړه : زه د الله رسول يم زه نه يم چې د هغه سرکشي (نافرماني) وکړم .

نو ګوره صحابه و ، دا تعجب او د نبي صلى الله عليه وسلم دا ځواب ښکاره دليل دی پدې چې دغه څو شروط دا د نبي صلى الله عليه وسلم ځانګړتيا وه چې د خاص وحي په ذريعه يې منلي دي ، اګر چې عقل ورته ډېر حيرانيږي ، دغه ډول د صحيح مسلم د روايت دا جمله چې نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: **ومن جاءنا منهم سيجعل الله له فرجا ومخرجا .**

ژباړه : او څوک چې مونږ ته له هغوی څخه راځي نو زر دی چې الله به ورته پراخي او د ډې مشکل څخه د وتلو لاره ورکړي . صحيح مسلم باب صلح الحديبية .

چې دا ټول هغه اشارات دي چې پدې ډول شروطو کې د نبي صلی الله تخصيص ثابتوي : بله وجه د دې دا ده چې بيا له هغې وروسته چې اسلامي دولتونو کې د هغې خلفاوو له کفارو سره څومره سولې کړي د هيڅ تاريخ نه څوک د دې اثبات نه شي وړاندې کولی چې په کومه سوله کې يوه ماده له دې مادو څخه کوم کافر پيش کړې وي او مسلمانانو ورسره منلې وي .

بيا حيرت او تعجب په حال د تحريکي شورى چې دعوی د حنفي مسلک کوي خو د عداوت اوتعصب کچه يې دا ده چې د خپلو مخالفينو په مخالفت کې د خپل مسلک او مذهب نه هم تېرېږي ځکه چې د ابو حنيفه رح په نزد د حديبي دا شرط منسوخ دی او په هيڅ وخت کې قابل د عمل ندی علامه عيني حنفي فرمايي : **وقال السهيلي وفي قول سهيل لا يأتيك منا رجل وإن كان على دينك إلا رددته ، منسوخ عند أبي حنيفة** . عمدة القارى للعينى ١٣/٢٧٧]

دغه ډول مشهور حنفي فقيه عالم کمال الدين ابن همام المتوفى ٨٦١ هـ فرمايي: **ولو شرطوا في الصلح أن يرد عليهم من جاء مسلما منهم بطل الشرط فلا يجب الوفاء به فلا يرد إليهم من جاءنا منهم مسلما وهو قول مالك** .

ژباړه : که چرته شرط کېږدي په صلح کې ددې چې که د دوی له خوا نه څوک مسلمان راشي مونږ ته دا به واپس ورکولی شي نو داشرط به باطل وي پدې باندې پوره والی کول دا واجب نه دي ، نو نه به شي ورکولی دوی ته چې څوک مونږ ته د دوی نه مسلمان راشي او دا د امام مالک قول دی .

بیا ابن الهمام د امام شافعي رحمه الله قول ذکر کوي چې هغه په ښځه او نر کې فرق کړی چې ښځه به نه ورکوي او نارینه دې ورکړې بیا وروسته ابن الهام د سورة الممتحنة ۱۰ نمبر ایات راوړی **{فإن علمتموهن مؤمنات فلا ترجعوهن إلى الكفار}**

ژباړه : که چرته تاسې ته علم وشو د دوی د ایمان باره کې نو بیا دا مه ورکوئ کفارو ته

نو ابن همام فرمایي : **وهذا هو دليل النسخ في حق الرجال أيضا، إذ لا فرق بين النساء والرجال في ذلك ، بل مفسدة رد المسلم إليهم أكثر .**

ژباړه : او دا دلیل دی د منسوخ والي په حق د نارینه وو کې هم ځکه چې فرق نشته دې باب کې د نارینه او زنانه وو ترمنځ بلکې فساد په واپسۍ د مسلمان کې زیات دی .

فتح القدير لابن الهمام ۵/۴٦٠

بیا ابن همام د هغه وخت او دې وخت د واپسۍ د جواز او حرمت علتونه او اسباب ذکر کړي چې خلاصه یې داسې ده : هغه وخت به چې قبیلې ته کوم مسلمان واپس کېده نو که هغه به تعذیبېده هم نو د خپل کورنۍ له طرف به تعذیبېده نه دا چې د نورو قبیلو کفارو به تعذیباوه او اوس خو معامله ددې خلاف ده ملخصا .

نو غرض مې پدې تفصيل سره د تحريکي شورى غوړونه خلاصول دي پدې چې لږ حيا وکړي

1. د الله نبي صلى الله عليه وسلم دا کار په خصوصيت سره کړی امت ته پدې عمل جايز نه دی .

2. دا عمل د حنفي مسلک له مخې منسوخ دی او تاسې دعوی د حنفي مسلک کوئ اگر چې دې کې لکه د خپلو بادارانو افغاني طالب ملېشو درواغجن ياست خو چې بيا هم تاسې دعوی د حنفيت کوئ نو د ابو حنيفه په نزد دا عمل منسوخ دی تاسې ته خو ددې يادونه بيخي نده مناسب .

3. که د الله نبي صلى الله عليه دا کار کړی او ستاسې بقول دښمن يې کم کړی ځانته نو دا يې د صلحې په اساس کړی چې شرعي صلح وه خو تاسې د دښمن د کمېدو په نوم چې کومه دوستانه او ډيپلوماتيکه پروژه په کار اچولې نو دا بغير له صلحې ده اگر چې د الله نبي صلى الله عليه وسلم په صلح کې هم داسې ندې کړې پاتې خو لا پرته له سولې.

4. که د الله نبي صلى الله عليه وسلم ستاسې په اصطلاح دښمن کم کړی نو تر يو محدود او موقت وخت لپاره چې هغه موده د صلحې وه خو چې کله هغه موده او ميعاد پوره شوی او يا دښمن نقض کړی نو بيا يې پروا نه ده کړې او ډاريک يې حمله ورباندې کړېده .

5. بل که د الله نبي صلی الله علیه وسلم دښمن کم کړی نو بیا یې هم دښمن ګڼلی دی دا نه چې د جنګ نه یې ورته ځان بچ کړی نه یې ورته دوست یې ورته ویلی دی او نه یې ورته محکمو او جرګو ته عذرونه او فریادونه کړي دي ، ستاسې دا قاعده چې دښمن کمول شرعي سیاست دی دا تاسې ته دومره ضرري تمامه شوه چې ایمانونه یې درته د زړه او دماغو نه وویستل نه ولاء پیژنئ او نه له براءت څخه خبر یاستئ، خو بس دښمن کم کړه! دښمن کم کړه! دا درته توره ښکاري نو کله بین الملل ته خپل سپیناوی کوئ ، کله امریکا او د هغې متحالفینو ته کله د روافضو سره د اخوت اظهار کوئ او کله د وطن د نصرانیانو سره کله د جمهوریت په مردارانو تعزیې او ورباندې ژړا ګاني کوئ او کله د وطن د مرتدو سیاسي ګوندونو څخه مننې کوئ، چې دا ټول تاوان مو د همدې خود ساخته قاعدې نه جوړ دی چې دښمن کمول شرعي سیاست دی.

دا قاعده تاسې ته د خپلو بادارانو افغاني طالب ملیشو نه در پاتې او هغوی ته د روس خلاف د وطني جنګ د رهبرانو نه په میراث کې پاتې شوی، نو ځکه خو مو نن دښمن کم څه بلکې بیخي دښمن نشته!! ګني افغاني طالب ملیشې دې د اسلامي خلافت د مؤمنو مجاهدینو نه بغیر یو دښمن مونږ ته په ځمکه راوښایي شاباسی به ورکړو!

ستاسې تحریکیانو په حال افسوس راشي چې تاسې ترې کوم امیدونه کول نن هغه کوم دي.

ځکه تاسې ليکلي:

په عمومي ډول د اسلامي امارت په ښوونځو سترګې پټول يوه ستره جفا ده ځکه کومې مسلکي نيمګړتياوې او تعصبونه چې د اسلامي امت په منځ کې موجود دي دا د يو غوره او معتدل تعليمي نصاب په ترتيب کولو سره له منځه تللی شي او له امارت څخه هم زموږ دا هيله ده چې ان شاءالله د راتلونکې فتحې څخه وروسته به زموږ د ا ارمان پوره کوي ، صـــ ۱۲ .

نو اوس تحريکي شورى څه ځواب کوي چې امارت خو فتحه(!) هم ترلاسه کړه د اسلامي امت د کوم درد دوا شو؟ د چين نه يې د شرقي ترکستان د مظلوم مسلمان ولس پوښتنه وکړی شوه؟ که نه د هغوی په مقابل کې لا د چين حربي کفارو سره د محبت او أخوت ځنګلې جنګوي او په تحفو کې ورته چنغوزي ډالۍ کوي.

د اسرايل خلاف د فلسطين د قضيې تشه يوه پوښتنه يې وکړه؟ لرې مه ځئ ستاسې دښمن چې ستاسې په اصطلاح د پاکستان فوځ دی ، چې جهاد ورسره تاسې فرض ګڼئ دوی سره د امارت دوستي ده که دښمني؟

اى د تحريک طالبان پاکستان کشرانو! که مشران مو په نورو خبرو دوکه کوي دا پوښتنه ترې ولې نه کوئ چې که امارت رښتيا اسلامي وي نو بيا زموږ د دښمن سره دوستي ولې په مخ وړي دا ستاسې د هغو مقتولينو سره خيانت نه دی چې د پاکستان حکومت يې در ته قتل کوي او امارت افغاني ورسره دوستي په مخ وړي تاسې باندې څه شوي

ای د تحریک کشرانو ولې دومره تاواني غفلت ښکار کړي یاست؟ بلکې امارت خو د پاکستان په تعاون او اشارو د تحریک ډېر لوړ پوړي او جیګ پوړي مشران په مختلفو طریقو افغانستان کې ترور کړل او لا دا لړۍ جاري ده خو ستاسې تحریک همدا یو حدیث د زاد الطالبین نه ښهٔ یاد کړی چې " من صمت نجا! "

دغه ډول افسوس راشي د تحریکي شورى پدې حماقت چې لیکي اسلامي امارت د اسلامي امت ګډ کور دی . ص ۱۲

دا د تحریکي شورى دعوى ده خو نن د امارت حال ووینئ چې د اسلامی امت پرځای د کفري امت ګډ کور ګرځیدلای دی، ځکه چې د ځمکې په مخ هیڅ داسې کافر نشته چې امارت یې خپل دښمن ګڼي نو داسې هیڅ یو مسلمان نشته چې امارت د شریعت په رڼا کې د هغه د دیني او دنیوي تحفظ غږ پورته کړی وي ،د فلسطین ، شام ، عراق ، پاکستان ، هندوستان ، بورما ، شرقی ترکستان ، ایران وغیره کې د مسلمانانو سره د ظلم ، وحشت او بربریت په مقابل کې د دوی د خاموشۍ نه ګیله نه کوو او نه د یادو ممالکو د حکومتونو سره د دوی د دوستۍ نه ګیله مند یو، بلکې په افغانستان کې داخل یې د مؤحدینو مهاجرو ، انصارو او عامو مؤمنانو سره د داسې سرسختې دشمنۍ تاریخ نوټ کړ، چې ترقیامته به د ایمان والاو ځخه هیر نشي ، هو همدا امارت دی چې نن یې په سلګونو کفري مؤسسې او این جیوز ګاني افغانستان ته را ننویستې چې په کیلو بوره او دړې اوړو باندې یې د مسلمان نسل ایمانونه ور دوره کړل ، د رافضیت ښهٔ کلک دعوت کیږي ،د نصرانیت او یهودیت دپاره په لوره کچه بلنه ورکول کیږي، خو د رب العالمین

د توحيد صحيح عقيده او دعوت دا د خارجيت او وهابيت او لامذهبيت په نومونو د سور كراس په نښهٔ ممنوع العمل اعلانيږي ، قبوريت او بت پرستي پکې د جمهوريت د وخت نه زياته ليدل کيږي نه سيک بد کوي، ددوی په اصطلاح او نه رافضي ملامت دی د هريو شخصي او اجتماعي امنيت نيول کيږي ، که ځوک د امت د مؤمنانو په مېندو باندې عيب او تهمت لږوي ،صحابه کنځي او د علي عبادت کوي نو هم محفوظ دي او که څوک د گورو نانک عبادت کوي او الله کنځي نو هم ورته جواز شته ، ولې چې دا ټول د (همه او است) له قبيلې څخه دي!

هو ! دا د وحدت الوجود د اعتقاد برکات دي، چې نن د مخلوق او خالق ترمنځ فرق کول داعشيت او خارجيت گڼل کيږي او ددې برعکس منهج رانيول دا بيا د دښمن کمول دي چې دا نو بيا ستاسې په اصطلاح شرعي سياست دی! لاحول ولا قوة الا بالله مونږ دا خبره لله الحمد په جيگو سترگو کوو او فخر ورباندې محسوسو چې که بغدادي تقبله الله او د هغه جانشينو خلفاؤ ترننه د اصلي کافر او مرتد ترمنځ فرق نه دی کړی ، بې دريغه يې وژلي او وژني يې همدارنگه که د صوفيانو خانقاوې ، د روافضو مزارونه ، د يهودو گرجې او که د نصاراوو کليساوې يې نړولي نو دا يې د خپل رب په بې شمېره فرامينو باندې عمل کړی لکه څرنگه چې الله متعال په سورة البقرة 193 کي فرمايي :

وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ لِلَّهِ .

او د سُورَةُ الا َنفَال په 39 نمبر ايت کريمه کې فرمايي : وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِۚ

ددې دواړو اياتونو معنا داده چې : اې مؤمنانو! له دې کافرانو سره تر هغه پورې وجنګېږئ چې فتنه (يعني شرک او کفر غالب) پاتې نه شي او ټول دين د الله لپاره شي خو ددې برعکس چې امارت د دښمن کمولو جعلي او خود ساخته اصول عملي کول نو نن يې دښمن کم څه بلکې بيخي ختم کړ ، واه څه عجيب اصول دي د امارت ، څه عجيب عقل او فراست دی د تحريکي شورى چې ليکي :

په افغانستان کې يو لوی شمېر اهل تشيع ميشت دي که دا موجوده طاغوتي اداره سقوط وکړي، نو د اهل تشيع په شمول ټولې فاسدې ادارې سقوط کوي، خو که اسلامي امارت د اهل تشيع په معابدو باندې عمليات وکړي ،نو ټول اهل تشيع به ځانونه وسلوال کړي او يو نوی محاذ به خلاص شي . همدغه راز الحمدلله په افغانستان کې د پخوا په شان قبوريت ، قبر پرستي نده پاتې ، او الحمدلله داسې بدعتونه او قبر پرستی له پخوا نه نشته لکه څرنګه چې په هند او پنجاب کې دي . صــــ ۸ .

دلته دې لوستونکي يو کار په دوه کارونو کې ضرور وکړي اول خو دې يا خپله تکليف وکړي رادې شي او په خپله دې لړ د افغانستان او پدې کې د حاکم مرتد امارت حال ووينې چې دا دی اوس خو هغه ټېر نظام سقوط وکړ نو روافض کم شو که نه لا ډېر شوي؟ دوی مخکې ډېر په امن وو که اوس؟ د روافضو کوم شرکي معبد نړېدلی که نه

لا ورپسې نور اباد شوي او زيات شوي دي؟ او بيا نه تنها روافض بلکې د مشرکو سيکهانو څه حال دی؟ دغه ډؤل د نړی د حربي کفارو سره چلند ، دوستي او ولاء په کومه درجه کې ده؟ د شرکي تصوف او صوفيت کچه او دغه ډؤل د قبرپرستی کچه په کوم حد کې روانه ده؟ د وطنيت او قوميت اعتقاد او نظريه د تېرې اداري په نسبت اوس څو چنده زياته ليدل کيږي؟ دا او دېته ورته أمور دي خپله ووينې بيا دې د تحريکي شورى دا پورته ذکر شوي خبره وتلې چې څومره وزن لري، بلکې تحريك طالبان خپله د هغې عقيدې کلك معتقدين او حامين دي د کومې عقيدې چې د امارت افغاني نه د ختمولو جعلي اميدونه ظاهروي شاعر رينبتيا فرمايلي :

لا تنهى عن خلق وترکب مثله ... عار عليك إذا فعلت عظيم .

او که لوستونکي د بل وطن وي او پاسپورټ نه شي جوړولی ځکه افغانستان ته د راتلو لپاره د الله راليږلی پاسپورټ چې کلېمه د توحيد او ظاهري اسلام دی دا د صوفي ملاهيبت الله خان په نزد معتبر نه دی، بلکې دا به د کفري اصولو موافق پاسپورټ جوړوي بيا به را داخليږي ځکه امارت ته يواځې همدا معتبر دی ، نو بيا چې کله راتلل ورته ممکن ندي نو که پاکستان کې وي نو لنډ دې د تحريکي شورى نه دا پو ښتنې وکړي او ورته دې ووايي چې نن دا پورته ذکر شوي امور په کوم حال کې دي،آيا تاسي چې څه ويلي وو همغسې وشو؟ ستاسې د دغه غولونکو وړاندوينو په اساس امارت د روافضو او سيکانو او صوفيانو شرکي مزارات ونړول؟ خو ځواب به همدا وي چې نه لا دا کارونه نه دي شوي، پوهيږو چې دا ولې؟

خو ځواب يې مونږ نه واورئ! کوم جنګ او جنګيالي چې د وطنيت په نظريه او اصولو روان وي په الله قسم د هغه نه د شريعت د تنفيذ ، د اعلاء کلمة الله او شرعي حقيقي جهاد تمه کول داسې دي لکه مار او لړم نه د خير تمه کول ، نو د تحريک کشرانو ته وايو ستاسې امارت رينښتيا هم دښمن کم کړ، که نه ټول دښمنان يې دوستان کړل او اوس يې بيخي دښمن ورک کړ؟

بيا تحريکي شورى ليکي :

## پنځمه وجه :

پنځمه وجه دا ده چې بغدادي صيب خليفه نه دی ځکه چې شرعي خليفه له دريو شرعي طريقو څخه په يوه شرعي طريقه مقرر شوی وي :

بيا يې دا طريقې ذکر کړې چې خلاصه يې دا ده : اوله طريقه : انتخاب د اهل الحل والعقد .

دويمه طريقه : استخلاف چې د ړومبي خليفه له خوانه شوی وي .

دريمه طريقه : هغه حصول د خلافت دی په طريقې د زور او غلبې ... الخ ، من صـــ ۴۵ ، الى صـــ ۵۷ .

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

لوستونکو ته به د مخکې بحث نه بار بار جوته شوې وي چې د خليفه په انتخاب کې دغه يادې طريقې شرعي طريقې دي او پدې کې چې هره طريقه باندې خليفه منتخب

شي نو دا به خليفه وي او طاعت به يې په كافة الأمة باندې فرض وي او نافرماني به يې ګناه وي چې وصف ته په كتو به ورباندې حكم لرېږي، نو كه د خارجيت وصف و نو نافرمان يې خوارج دي ، كه د بغاوت وصف و نو نافرمان به باغي او كه ددې نه بغير نور صورتونه وي نو بيا به فاسق ، عاصي و غيره ګڼلى شي .

الحمدلله پدې كې په رومبى طريقه باندې په شام او عراق كې انصارو او د نړۍ د ګوډ ګوډ نه راغلو مهاجرينو ، قائدينو څخه اهل الحل والعقد وروسته د كافي تفتيش او تحقيق نه ابو بكر بغدادي الحسيني القرشي تقبله الله تعالى سره بيعت وكړ او هغه يې مسلمانانو ته د خليفه او امام په صفت ورمعرفي كړ، چې د شام او عراق نه بغير د شرق اسيا او ورې وچې نه واخله تر افريقا او يمن پورې ورسره بيعتونه وشول ، اما كومو براى نام جهادي تنظيمونو چې مخالفت وكړ ، نو ددې وجه او علت هم مونږ لو ستونكو ته بار بار په ثبوتونو او أدلّه وو سره عرض كړ ، چې دوى كې وطنيت او قومي او خود ساخته مذهبي تعصبات موجود وو او ددې سره ، سره يې مركزي علت د بين الملل په اصولو ايمان لرل وو فقط ، نو ځكه يې د وسوسو ، شبهو او بې ځايه مذمومو تأويلاتو نه كار واخسته نو كله وايي چې دا بيعت اهل الحل والعقد په اتفاق سره نه دى كړى،او كله وايي اهل الشوكه موافقت نه دى كړى ، كله څه او كله څه وايي.

خو كه دوى هرڅومره چغې ووهي چې په بغدادي نه لسمه حصه مجاهدين راټول دي نه زيات او نه كم خو الحمد لله حقيقت نه تنها دوست بلكې دښمن هم درک كړى ، چې حقيقي او ريښتوني دي نو داسې يو مجاهد هم د بغدادي تقبله الله تعالى د خلافت

د منلو او د هغه د طاعت کولو نه نه دی شاته شوی او کوم چې شاته شوي نو هغه برای نام مجاهدين او د هغوی مشران دي لکه د کومو يادونه چې تحريکي شورى په صـــ ۲۴ او صـــ ۵۱ کې کړې ځکه د دوی ټولو حقيقت ورځ په ورځ مسلمانانو ته راښکاره کيږي ، د وطنيت او قوميت په شمول يې د طواغيتو سره تعلقات او بين المللي کفري اصولو ته ژمنتيا او ليوالتيا هم امت وليده ،خو افسوس راشي په حال د تحريکي شورى چې ليکي : له بغدادي سره خو د هغه خلکو موافقت نشته چې هغوی په مجاهدينو کې د قدرت او واک خلک دي، لکه ستر جهادي مشران او حقپاله جهادي علماء چې په امانتدارۍ او عدالت پيژندل شويدي ، له همدې وجې بغدادي د امت په جهادي ليکو کې قدرت او واک نلري ، صــــ۴٦ .

سبحان الله دا په څنګه دا امت د جهادي ليډر او د عادل عالم په وصف ومني چې هغه د ايمان بالله پر ځای د ايمان بالطاغوت کليمه تکراروي د اختر منصور حال مو وکتلو چې د اسلامي خلافت په مقابل کې د روافضو سره د دوستۍ او ورورولۍ په پار يې تر ناولي صفوي دولت ايرانه پورې لاسونه ورسپړل او نن دي د هيبتوف د امارت تعلقات د نړۍ د کفري دولتونو سره خپله وګوري! د حربي کفارو دومره پيسې چې دوی ته راروانې دي ، د خلافت مقابل کې يې چې ملا ورمضبوطوي او شاباسياني ورکوي دا د تحريکي شورى په نزد حق پالنه ،امانتداري او عدل دی!؟

په شام او عراق کې هم د تش په نوم جهادي تنظيمونو حال بار بار وليدل شو، چې وخت په وخت يې د اسلامي دولت په مقابل کې د مرتدو حکومتونو سره تحالفونه رسنيز

شول ، د القاعده او جبهة النصره حال دې هم وګوره الغرض نن تاسې ماته يو داسې تنظيم په ډوی کې را وښايې چې هغوی د يو نه يو کافر او مرتد سره تعلقات نلري او دوستانه اړيکي ورسره ونه لري ، ځکه ستاسې د ټولو شعار همدا يو اتفاقي شعار دی چې دښمن کم کړه! چې نن مو ددې قاعدې ښکلې نتيجه وليده چې کم خو څه بلکې هيڅ کافر مو دښمن پاتې نه شو الله اکبر .

خو بل طرف اسلامي دولت ته ورځ په ورځ دښمن زياتيږي ، خو دا نه دی مګر ښکاره دليل دی په دې چې حق د اسلامي دولت سره دی وبره د اسلامي دولت نه کيږي ماته د امام ابن عقيل رحمه الله قول را ياد شو چې فرمايي :

**إذا أردت أن تعلم محل الإسلام من أهل الزمان فلا تنظر إلى زحامهم في أبواب الجوامع ، ولا ضجيجهم في الموقف بلبيك ، وإنما انظر إلى مواطأتهم أعداء الشريعة .**

ژباړه : چې کله ته اراده وکړې ددې چې د اسلام محل په يوه زمانه کې وپيژنې نو د زمانې والاو رش ته د مساجدو په دروازو کې مه ګوره او مه د هغوی د لبيک چغو ته ګوره په موقف کې بلکې د شريعت د دښمنانو حملې ته وګوره په دوی باندې

، الآداب الشرعية والمنح المرعية 237/1 لمحمد بن مفلح .

بيا تحريکي شورى ليکي :

## شپږمه وجه :

د یو کس د خلافت د انعقاد او قیام لپاره د یو څو کسانو بیعت کفایت نه کوي، بلکې د امت د اکثریت موافقه ورته شرط ده او له بغدادي صیب سره یواځې خپلې ډلې بیعت کړی . ټول امت یا د امت د سواد اعظم او یا د مجاهدینو سواد اعظم ورسره موافق نه دي . صـ٥٧

### ⇐ الجواب بعون اللّه الوهاب :

د لوستونکو په الحمد لله پدې خبره سرخلاص شوی وي، چې د تحریکي شوره سره په لاس کې دلیل نه شته بغیر له همدې یوې رټې نه چې په مختلف تغییر سره یې بار بار د یوې خاص وجې په صفت پیش کوي، چې بغدادی صیب سره دومره او دومره خلکو بیعت ندی کړی نو لهذا دا خلیفه نه شي کیدای .

خومونږ ددې ځواب کې هم بار بار همدا خبره کوو چې د علي رضي الله عنه د خلافت نه څه جواب کوئ؟ د عبد الله بن الزبیر رضي الله عنه د خلافت نه څه ځواب کوئ؟

بل که بقول تحریکي شورى ددوی یاد کرده برای نام جهادي مشرانو بیعت کړی وای نو دا به د سواد اعظم او ټول امت بیعت ګڼل کیدای شو؟ ښهٔ که داسې وای نو لږ تحریکي شورى نه وپوښتئ ،چې دا مشران مو څه شول او نن په کوم دریځ ولاړ دي نو که رینښتوني ځواب وکړي، نو معلومه به شي چې نه دا یاد مشران د دوی دا امت مسلمه نیابت کوي او نه د خلافت د قیام سره دلچسپي لري! ځکه تحریکي شورى یې د عدد او عُدة په لحاظ سره د خلافت د مجاهدینو او افرادو نه ٩٠ سلنه ګڼي، خو ان شاء الله

کلونه کلونه ووتل خو چا وانه وربدل چې دوی د الله د رالیږلي شریعت څخه کوم حد جاري کړی وي؟ دا دلیل دی پدی چې د دوی منشور دا نه دی، چې په څمکه خلافت قایم شي او مؤمنان د یو قیادت لاندې په یو امام او جماعت کې راغونډ شي خو تاوان نه رسوي دوی پدې کار سره مګر خپل ځان ته الله متعال فرمایي : وَإِن تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُم .

ژباړه : که تاسې مخ واړوئ ددې څخه ، نو الله به ستاسې په ځای کوم بل قوم راولي ؛ او هغوی به بیا ستاسې په څیر نه وي .

تحریکي شوری لیکي :

د بغدادي د خلافت د بطلان اووم دلیل داده چې بغدادي د امت لس حقوق نشي ادا کولای، ځکه د یوه خلیفه خلافت هغه وخت مشروع ګرځي بیعت او کمک کول یې واجبیږي چې د امت او رعیت لس حقوق ادا کولی شي وروسته به په تفصیل سره دغه لس حقوق ذکر شي .

د منهاج السنة النبوية په ٣٦٣ ص کې شیخ الاسلام امام ابن تیمیه رحمه الله ددې مسئلې لپاره یو مثال ذکر کړی دی : وهذا مثل كون الرجل راعيا للماشية متى سلمت اليه بحيث يقدر ان يرعاها كان راعيا لها والّا فلا .

ژباړه : د خلیفه مثال د یو شپون په څیر دی کله چې رمه ورته وسپارل شي نو که په څرولو یې قادر وي شپون ورته ویلی شو او که نه نو شپون نه بلل کیږي .صـ٦٣

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

حيران يو تحريكي شورى ته چې دوې د شروطو ، واجباتو او حقوقو ترمنځه فرق نشي کولی، ځکه چې دوی بناء بزعمهم اوومه وجه د ترديد ذکر کړې، نو دا شروط د صحت نه بلکې واجبات د امام او خليفه دي ، يا په بله معنا دا حقوق د رعيت دي په امام او خليفه باندې ځکه چې د همدې مقصد لپاره امام منتخب او تاکل کيږي او الحمد لله ددې حقوقو د رعايت کولو بغدادي تقبله الله تعالى په پوره اخلاص سره مظاهره کړې ده او نړۍ منلی دی چې د امت قيادت او د رعيت پالنه کونکی شخصيت دی ، د شام او عراق په پراخه او وسيعه خاوره چې رب تمکين ورکړی و، نو د تحريکي شورى ذکر کړده دغه لس امور چې دوی پدې رساله کې د صــ ٦٣ نه ترصــ ٨٢ پورې ذکر کړي دا ټول الحمدلله بغدادي تقبله الله تعالى عملاً اوثبوتاً پيش کړي دي .

١ ــ حدود يې کاملاً نافذ کړل .

٢ ــ د رعيت د دين او عقيدې د تحفظ او زده کړې يې پوره حق اداکړ .

٣ ــ د دارالاسلام د حريم نه يې تر اخري وسعې او توان دفاع وکړه ، اصدارات موجود دي تنها موصل ولايت کې د صليبي او رافضي ټلوالې د مسلسل ړوند بمبار ، هوايي او ځمکنۍ خونړۍ حملې باوجود تقريباً يو کال وجنګېدل چې دا ريکاډ او کارنامه په هغو کې ونه ليدل شوه، چې تحريکي شورى ورباندې ګورګورې ځنډې او وايي : أما بغدادي

صيب د اسلامي امت په ټولنه کې په دغه مرتبه کې نه دی چې خلک يې په بيړه سره طاعت ته راودانګي او ورسره په بيعت کولو کې توقف ونکړي .

علاوه لا دا چې د هغه په نسبت په امت کې ډېر داسې شخصيتونه شتون لري چې امت پرې راټوليږي او له خو لسيزو راهيسې ځانونه ورته منسبوي!! . ص۶۲

نو تحريکي شورى ته لږ ددې شخصيتونو کارنامې ور په ګوته کوو چې کله ورباندې صرف امريکې حمله وکړه نو په ځلويښتو کروزونو يې ترينه د يوې ورځې په موده کې کابل او د لسو ورځو په موده کې يې ترينه ټول افغانستان واخيسته ، خو بغدادي ته رب العالمين په قيادت کې د دښمن په ځپلو کې هم د نورو امورو غوندې داسې ملکه او فراست ورنصيب کړی و، چې کفري نړۍ يې د نوم نه ترننه مرګونی او وحشي ډار محسوسوي ، د مرکزي خلافت ولايات او ساحې پرېږده د خراسان په وړه ترانګه کې يې خپل مجاهدين په داسې تکتيک د صليبي ټلوالې او د جمله مرتدو او صوفي مشرکو ملېشو سره وجنګول چې يوه لوېشت ځمکه يې ترې ونه نيولی شوه په زرګونو کروزونه ، بې شماره ډرونونه ، قسما قسم الوتکې او اسلحې يې وکارولې چې بالاخر د افغاني طالب ملېشو ښکاره ردت ټولې دنيا وليده چې د قطر د پرېکړې دېخوا د صليبي امريکا او د نړۍ د کفري او مرتدو ځواکونو په تحالف د کروزونو ، جيټانو ، بي ون او بي باون په مرسته د پاکستان د سيول فوج په کورديناتو په هره لار راروان شول ، مرتد افغان حکومت خوراکې توکو ته لارې بندې کړې مهمات ختم شول چې هر مجاهد يې د خپل

رب په نزد معذور وګرځېده او له هغې بعد ترینه تمکین لاړه چې داسې په میړانه معرکه ستاسې یاد کړو شخصیتونو کله هم نده رهبري کړې.

۴ بغدادي تقبله الله د دین د تحفظ په پار د حسبې اداره فعاله کړه .

۵ حدود یې سل په سله نافذ کړل .

٦ شرعي محکمې فعالې شوې .

۷ شرکي مواضع او شعایر یې ونړول .

۸ د توحید او سنت د عقیدې دروس او زده کړې یې په رعیت پیل کړې .

۹ عامه خدمات او سهولتونه یې رعیت ته میسر کړل .

۱۰ د اسلامي سرحداتو ساتنه یې جدي کړه .

۱۱ سریّې او لښکرې یې تشکیل کړې .

۱۲ اداري او عسکري نظام ته یې لایحه جوړه کړه .

۱۴ تعلیمي نصاب یې کامل کړ .

۱۵ د وینځو او غلامانو احکام جاري شول .

۱٦ د غنیمت او مال فيء احکام یې عملي کړل .

۱۷ حدود او باډر چې به ورته مخ ته راتلل دا به یې ختمول .

۱۸ د جزيې احکام يې اعلان کړل .

۱۹ د هر ولايت رهبري ، د هغې د راپور او محکمو نه به يې پخپله ځان خبرولو ، ادارک به يې کولو .

۲۰ د بيت المال او جباية الزكات اداري يې فعالي کړې .

د هر کار يې ژوندي ثبوتونه موجود دي بلکې دنيا کې يې يو داسې نظريې ته روحيه ورکړه چې د پيړيو پيړيو را هيسې يې عملاً خو څه د نوم سره يې هم څوک اشنا نه وو ،

خو مونږ د لسيزو لسيزو شاهدان يو چې ستاسې ياد کرده شخصيتونو کې يو هم ددې په نيمه ، دريمه بلکې په لسمه برخه هم عمل کونکی او قادر ونه ليده!!

که تاسې ته د بغدادي سياست خطا ښکاري نو تاسې د ياد کرده شخصيتونو سياست نه لږه پرده پورته کړئ دوی څه کړي او څه يې وکړل؟ نن وګورئ ستاسې شخصيتونه کفارو ته مطلوب او کفار ترې په ډار دي او که د اسلامي دولت اميران او مجاهدين؟ بغدادي تقبله الله خپل عذر رب ته پيش کړی او په قيامت کې به رب ته ووايي چې ای الله ماته چې تا څومره ځمکه باندې تمکين رانصيب کړی و، ما هلته يوه ورځ هم ستا شريعت ندی معطل کړی ان تردې چې دا علاقه مې د لاسه تللې ، زه او مجاهدين مې د شهادت په مقام فايز شو!

خو حيران يم چې ستاسې شخصيتونه به څه وايي چې مونږ خو هم په پراخو او وسيعو ځمکو تمکين او قدرت لرلو خو چرته په لږه برخه د ځمکې يې د رب شريعت نافذ نه

کړ او نه يې خپل جنګ د ولاء او براء په اصولو مزين کړ ، على کل حال دا ښکاره فرقونه دي د ربښتينو ، حقيقي مجاهدينو او د براى نام مجاهدينو!

نو دلته د تحريکي شورى د مخکې پشان دا خبره هم غلطه ده چې خليفه به دا امت دا لس حقوق اداء کوي ، نو بيا به خليفه وي که نه نو نه به وي ، بلکې صحيح خبره داده چې واجبات د امام دا شروط د صحت د خلافت نه دي ، سره له دې چې بغدادي تقبله الله او له هغه نه بعد ابو حفص الهاشمي حفظه الله تعالى پورې ددې حقوقو او واجباتو پوره کونکي دي .

مزيد دليل پدې چې واجبات د امام د خلافت د انعقاد او صحت لپاره شرط نه دي لومړى وجه : چې که يو خليفه او امام ظلم شروع کړي لکه حديث کې راځي چې: **وَإِنْ ضرب ظَهْرَكَ ، وَأَخذَ مَالكَ فَاسْمَعْ وَأَطِعْ .** اګر که ستا ملا وهي او خپل مال درڅخه اخلي پس بيا هم سمع او طاعت کوه ، دغه ډول د صحيحينو دا روايت چې " إلا أن نرى كفرا بواحا فيه من الله برهان " نه معلوميږي چې امام او خليفه ترڅو بواح کفر ته راتلل نه وي کړي نو ترهغې به دا امام وي او ددې د طاعت نه غاړه ويستل به حرام وي او دا معلومه خبره ده که دغه لسو وجيبو کې بعضې وجيبې امام اداء نه کړي اګر چې قصداً يې هم عملي نه کړي، بيا به هم دا امام ګڼلی شي ، نو بغدادي تقبله الله او يا وريسې نور خلفاء چې الحمد لله ددې وجيبو د عملي کولو پوره کوشش کونکي او مخلص وو تقبلهم الله ، او موجوده خليفه يې هم د عملي کولو په کوشش کې دى، بلکې دا حقوق عملي کول موجوده امت صرف کتابونو کې ليکلي وو خو لله الحمد د

اسلامي دولت او خلافت خلفاؤ په عملي بڼه امت ته په میدان ور وښودل ، نو بیا ولې موجب د طعن او محل د اعتراض ګرځي؟ او که بالفرض د بعضو حالاتو او حوادثو په بناء ونه شي کولی بعضې حقوق اداء کړي نو دا د هغه سره د بیعت نه کولو جواز نه شي کیدی لکه تاسي د عثمان رضي الله عنه باندې واقع حادثه وګورئ رعیت پرېږده خپل ځان ته یې امن ورکول د وسع او توان نه بهر شو خون خرابي او د بیت المال لوټل وغیره دا ټول هغه څه وو چې د واجبات الامام له قبیلې څخه شمارل کېدل خو کېسه د وسعې نه ووته نو خلک به اوس د عثمان د امامت او خلافت نه انکار کوي؟!

د عبد الله بن الزبیر سره کوم حالات راغلل د علي رضي الله عنه سره مشکلات او حوادث چې د ډیری واجباتو د تطبیق او عملي کولو نه یې معطل کړی و، نو اوس به دا خلیفه او امام نه ګڼل کیږي؟! او د بیعت نه به یې انکار کیدای شي؟! نه قطعاً داسې نه ده بلکې دغه حقوق عملي کول دا مهام د خلیفه دي چې کله هغه دا قصداً او عمداً ترک کړي او ددې په اداء کې نه جبرانېدونکی غفلت وکړي، نو بیا به موجب د طعن ګرځي ، بیا که تدارک او اصلاح کیدای شوه فبها او که نه شوه کیدای نو بیا به دده د عزل او امامت نه د ګوښهٔ کېدو نورې شرعي لارې کتلی شي ځکه مقصود د خلافت او امامت هغه همدا امور نافذول دي .

نو د ابن تیمیه رحمه الله عبارت چې : **إذ المقصود بها عمل أعمال لا تحصل إلا بقدرة ، فمتى حصلت القدرة التي بها يمكن تلك الأعمال كانت حاصلة وإلا فلا ، وهذا**

**مثل كون الرجل راعيا للماشية ، متى سلمت إليه بحيث يقدر أن يرعاها ، كان راعيا لها وإلا فلا .**

دا عبارت دلته د بغدادي تقبله الله په خلافت باندې د ردّ په زمره کې پېش کول دا د توجيه القول بما لايرضى به قائله مصداق کار دی ځکه چې بغدادي تقبله الله خو د مسلمانانو سره داسې عظيم احسان او د هغوی حقوق يې داسې اداء کړل چې د خلفاء راشدينو څخه په دېخوا يې څوک مثال نه شي پېش کولی فجزاه الله عنا وعن الاسلام خيرا .

دغه دؤل مامون او واثق د ظلمونو او مکفره بدعاتو اشاعت په چا پټ دي چې د وخت معتزله پکې د قضاء منصبونو ته ورسېدل او په بې ځايه تأويلونو يې دا خلفاء د ځانونو نه پدې مسأله کې متأثر کول خو امام احمد بن حنبل رحمه الله د دوی د طاعت نه لاس وا نه خسته او بيا يې هم واجب الاطاعة خلفاء ګڼل ، اګر چې بار بار ترېنه د پاخون مطالبې هم د وخت علماؤ او ملګرو وکړې ،خو ده د هغوی خلاف قيام کول او د بيعت نه ځان ويستل جايز نه ګڼل ولې چې مساله د خلق القران د مسايل خفيه وو څخه وه ،چې د تکفير مانع وه د هغوی نو امام رحمه الله د بيعت نه وتل دا د مسلمانانو د اتفاق او جماعت ماتول تصور کول ، نو صرف پدې مساله کې چې دوی په خطاء وو دايې ورسره نه منله او نور په شريعت موافق مسايلو کې يې ورته طاعت کولو ددې نه معلومه شوه چې دغه لس واجبات دوی پوره نه اداء کول خو بيا هم د اهل السنة امام

امام احمد بن حنبل رحمه الله دوی خلفاء ګڼل او د خلافت نه يې ورته انکار نه کولو وګورئ تفصيلا قاعدة مختصرة في وجوب طاعة الله ورسوله وولاة الأمور وخصوصا صــــ 18 .

نو ددې نه معلومه شوه چې که امام ظلم کوي رعيت د خپلو حقوقو نه بې برخې کوي بيا به هم امام وي بيعت به يې له غاړې نه وباسي نو د تحريکي شورى د مقصد بطلان معلوم شو والحمد لله رب العالمين .

تحريکي شورى ليکي :

د بغدادي د خلافت د بطلان نهمه وجه دا ده چې د ده سلطه ډېره نيمګړې ده يواځې په يوه ځاى کې ده او د چا سلطه چې نيمګړې وي هغه خليفه نشي کيداى صــــ٨٢ .

بيا ليکي لسمه وجه دا ده چې د بغدادي صيب واک په ډېره لږه سيمه يعنې په ځينو ښارونو دى او د هر چا واک چې په ځينو محدودو ښارونو وي هغه خليفه کيداى نشي صــــ ٨٣ .

بيا تحريکي شورى ددې دعوى لپاره د معاصرو بعضو درباري ملايانو عبارات راوړې چې په متن يې دا ثابته کړې چې د بغدادي خلافت حق نه دى.

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

مخکې ابحاثو کې مونږ وضاحت کړی چې د سلطې نه مراد ټوله دنيا باندې سلطه شرط نه ده  لکه مکه کې مستضعفين وو همدارنکه د ځمکې په مختلفو برخو کې مسلمانان پيدا کيدل خو سلطه د نبي صلى الله عليه وسلم صرف په مدينه باندې وه او هغه هم دومره ساحه باندې چې خندق ترېنه تاوېدی شو نو اوس ددې سلطې باره کې تحريکي شورى څه وايي؟ د علي رضي الله عنه ، د عبدالله بن الزبير رضي الله عنه وغيره بعضو خلفاؤ سره سلطې کمې وې نو ايا دا به خلفاء نه حسابيږي!؟ بيا سره ددې چې بغدادي تقبله الله ته الله متعال په شام او عراق کې د برطانيې د جغرافيې نه لويه جغرافيه تمکين په لاس ورکړی وو او ښهٔ په نره يې ورکې د الله شريعت نافذ کړ ، د هيڅ ملامت کونکي د ملامتيا څخه ونه ډار شو ، نو لهذا دا خبره چې سلطه يې کمه او نيمګړې وه دا هسې يوه وسوسه ده چې د مسلمانانو مخې ته د خلافت سره د يو ځای کېدو لپاره کنده جوړوي خو لله الحمد د وسوسه اچونکو ناکامي ښکاره ده .

بيا تحريکي شورى ليکي :

## يولسمه وجه

دا ده چې بغدادي صيب ځکه خليفه نه دی چې له ده سره د امت مشرانو او خاصو خلکو بيعت نه دی کړی او د چا چې دا حال وي نو هغه خليفه نشي کيدای ...الخ صـــ۸۴ .

ځواب : تحريکې شورا د همدې تکراري شبهې غوړونه نيولي دي ، همدا يوه خبره په ځو قسمونو اړوي را اړوي ، چې دا د دوی په بې علمۍ او په اسلامي خلافت د تهمتونو د واردولو په برخه کې دوی سره د دلايلو په نه شتون دلالت کوي ، د تحريکي شورا دا تکراري شبهه او وسوسه مخکې هم بار بار په مختلفو شکلونو صادره شوې چې مونږ ترې الحمد لله قانع کونکي ځوابونه کړي دوباره تکرار ته يې ضرورت نشته!

بيا تحريکي شورى ليکي :

په خيرالقرون او اسلامي تاريخ کې داسې مثال نشته چې په يو چا باندې دې د يوې سيمې خلک متفق شوي وي او نور امت دې پرې متفق نه وي خو بيا دې هم هغه د ټول امت مسلمه لپاره خليفه ګرځيدلی وي . صـــ٨٦

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

دا به مونږ هم منلی وای خو که داسې وای ځکه په بغدادي تقبله الله تعالی د يوې سيمې نه بلکې د مختلفو سيمو خلکو اتفاق کړی يواځې په شام او عراق کې تاسې د سيمو شمير وکړئ بيا د نورو ولاياتو د سيمو تعداد وګورئ نو ستاسې دا خبره به خپله دروغ ثابته شي چې ګويا بغدادي تقبله الله سره د يوې سيمې خلکو بيعت کړی دی .

تحريکي شورى ليکي:

### دیارلسمه وجه :

که چېرې بغدادي صيب ددې کمو خلکو په موافقه او بیعت شرعي خلیفه وګرځي، نو بیا خو ټول جهادي مشران ، اکابر ، علماء کرام ، او لوی جهادي تحریکونه لکه : د افغانستان اسلامي امارت ، قاعدة الجهاد نړیوال جهادي تنظیم ، شباب المجاهدین ، د شرقي ترکستان اسلامي حزب ، د ازبکستان اسلامي تحریک ، د پاکستان د طالبانو تحریک او نور ټول جهادي تنظیمونه به باغیان شي ځکه چې له بغدادي سره موافقه نلري او دا په ښکاره باطله خبره ده ، ځکه له حسین رضی الله عنه سره ځینې خلکو بیعت کړی و او نور ټول امت ورسره بیعت نه و کړی پدې وجه هغه بیعت نه کونکو ته چا باغیان نه وو ویلي . ص۸٦

### ⇐ الجواب بعون اللّه الوهاب :

تحریکي شورى د یادو برای نام جهادي ګوندونو نه کعبه جوړه کړې او طواف ترینه کوي چې لر شي او که بر شي نو همدا وايي چې که بغدادي خلیفه ومنل شي نو یاد ګوندونه به خامخا باغیان ګرځي .

خو بیا عجیب استدلال د تحریکي شورى دا دی چې ببرته خپله خبره رد کوي او وايي چې د حسین رضي الله عنه سره خلکو بیعت ونه کړ نو هغوی بُغات نشول نو دا به هم بغات نه شي ګرځېدای خو که ددوی دې خبرې ته وګورو نو دلیل او دعوی یې خپلو کې هیڅ موافقت نلري وجه داده چې حسین رضي الله عنه خلافت نه وو اعلان کړی او نه یې په کومه حصه باندې سلطه او واک لرلو بلکې د هغه د خلافت متعلق به درته

اختصاراً د البدايه والنهايه څخه دا ذکر کړم چې کله علي رضي الله عنه شهيد کړای شو نو کوفيانو ورته خطوط راواستول چې مونږ درسره بيعت کوو ته راشه او تاخليفه کوو ، اگر چې صحابه کرامو هغه له دې کار نه په سختۍ سره منعه کړ، خو قدرالله وما شاء فعل چې هغه منعه نه شو ،نو هغه د ځان نه مخکې کوفې ته د خپل تره ځوی مسلم بن عقيل د ترتيب جوړولو او بيعت اخستلو دپاره واستاوه چې حالات جايزه او ترتيب جوړ کړي چې هلته د کوفيانو د بې وفايۍ او غدر په سبب عبدالله بن زياد چې په عراق کې د يزيد بن معاويه نائب وو هغه قتل کړ او ددې سره د حسين رضي الله عنه په جانب کې ولاړ ټول خلک تار تار شول او ټول د خپل عهد نه واپس وگرځېدل گويا چې دوی مسلم بن عقيل رحمه الله لاس تړلی عبيدالله بن زياد ته حواله کړ  هلته حسين رضي الله عنه د خپلې کورنۍ او ملگرو سره چې تقريباً درې سوه کسان وو عراق ته راروان شو خو لاورته هيڅ خبر دواقعې نه شته چې بالآخره کربلاء ته راورسيده نو عبيدالله بن زياد ورته يوه کتيبة چې تقريباً په څلور زره کسانو مشتمله وه ورپسې را واستوله او مخه يې ورته ونيوله کله چې د حسين رضي الله عنه سره مخامخ شول نو حسين رضى الله عنه ورته د کافي بحث او مباحثې نه وروسته وويل چې ماسره په درې خبرو کې په يوه خبره کې موافقت وکړئ إما أن يدعوه يرجع من حيث جاء ، وإما أن يذهب إلى ثغر من الثغور فيقاتل فيه ، أو يتركوه حتى يذهب إلى يزيد بن معاوية فيضع يده في يده .

ژباړه : يامې پرېږدئ چې واپس شم هغه ځای ته چې د کوم ځای نه راغلی يم ، يامې پرېږدئ، چې يو سنگر ته د سنگرونو څخه لاړشم او هلته دښمن سره وجنگيږم او يا مې

پرېږدئ، چې يزيد بن معاويه ته لاړشم او هغه سره لاس په لاس کې کېږدم بس چې هغه څه فيصله وکړه هغه به منظوره وي ، خو ددې په ځواب کې ورته د کتيبې مسؤل وويل چې دا يو هم درسره نه منو ترڅو ته عبيدالله بن زياد ته لاړنه شې او حسين رضي الله عنه نه غوښتل چې عبيدالله سره ملاقات وکړي نو ترمنځ يې پدې کشمکش کې جنګ واقع شو چې حتى حسين رضي الله عنه شهيد کړای شو او سرترېنه جدا کړی شو الخ .

البدايه والنهايه ٢٦٠/٦

نو اوس دې لوستونکي وګوري چې د تحريکي شورى دا خبره څومره صفا ددې حقيقي واقعې نه مخالفه ده ځکه نه حسين رض خلافت اعلان کړی و، نه ورسره واک او تمکين شته چې بيعت نه کونکي ورسره پدې بغات وګرځي خو ددې برعکس د بغدادي تقبله الله سره پراخ تمکين او د اهل الحل والعقد انعقاد موجود دی او د خپلو واجباتو د پوره کولو پوره ذمه واري په غاړه وړي نو دا څه بعيده او غټه خبره نه ده ، چې دده سره نه بيعت کونکي دغه ياد براى نام مجاهدين دې بغات وګڼل شي بلکې دوی خو رب د بغدادي تقبله الله نه په سرکشۍ کولو امت ته داسې سپک کړل چې د بغاوت صفت خو به ډېر ښهٔ وي چې ورکړی شي بلکې دوی خو لاړل د ردّت په کندو کې پرېوتل او نن يې د خلافت خلاف د حربي اصلي کفارو سره تعاونونه او تحالفونه ټول امت ته راښکاره شول لا حول ولا قوة الا بالله .

تحریکي شورى لیکي:

**څوارلسمه وجه :**

د خلافت مهم مقصد او ستره غایه د امت وحدت او یووالی دی او بغدادي صاحب چې د اهل الحل و العقد او د امت له رضا پرته کوم اعلان وکړ د امت د وحدت په ځای یې په امت کې اختلاف رامنځته کړ ...الخ . صـــ٨٦

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

د امت اتفاق او وحدت په جماعت او امامت قائمېدو سره راځي، ځکه خو د الله نبي صلی الله علیه وسلم جماعت کې د داخلېدو تاکیدي امر فرمایلی دی او جماعت نه وي مگر هغه چې امام او خلیفه ولري او د حذیفه رضي الله عنه حدیث کې ذکر دي ،چې هغه ته د الله نبي صلی الله علیه وسلم فرمایي تلزم جماعة المسلمين وإمامهم ، او دغه ډول نور بې شمیره احادیث دي چې هغې کې یې د جماعت نه وتل د دین نه وتل تصور کړي دي .

او بیا د جماعت او د هغې د امام په مقابل کې نورو ډلگیو ته فرقې ویلي دي او په فرقو کې یې د داخلېدو نه په ځان ساتنې امر کړی دی .

او الله متعال هم په فرقه واریت کې د داخلېدو نه منع فرمایلي : "واعتصموا بحبل الله جمیعا ولاتفرقوا " او تاسې منگولې د عمل ولگوئ په دین د الله او فرقې فرقې مه جوړیږئ .

شاعر وايي :

لا يصلح الناس فوضى لا سراة لهم

ولا سراة إذا جهالهم سادوا ،

اصلاح د خلکو نه راځي داسې چې ګډوډ وي او مشر د دوی نه وي او دا رهبريت ندی چې کله يې مشران جاهلان وي .

نو ځکه خو صحابه وو درک کړه چې دا وحدت او اتفاق نه راځي د اختلاف او فرقه واريت مخه نه نيول کيږي مګر د خلافت په بقاء ، نو همدا غم او فکر و، چې د الله نبي صلى الله عليه وسلم لا تکفين شوی او تجهيز شوی نه دی، لا د فن شوی هم نه دی جسد مبارک يې لا په خپل ځای قرار لري ،خو انصار او مهاجر د خليفه او خلافت تنصيب پسې راټوليږي، که چرته دا دومره ضروري او مهم نه وی خو يو دوه درې ورځې به يې همداسې تېرې کړې وای چې کله يې د الله نبي صلى الله عليه وسلم دفن کړی وای له هغې نه بعد به يې بيا په قراره امام او خليفه مقرر کړی وای دومره جلتې ته څه ضرورت و؟ امام بن حجر الهيتمي فرمايي : **اعلم أيضا أن الصحابة رضوان الله تعالى عليهم أجمعين أجمعوا على أن نصب الإمام بعد انقراض زمن النبوة واجب بل جعلوه أهم الواجبات حيث اشتغلوا به عن دفن رسول الله صلى الله عليه وسلم .**

ژباړه : همدغه رنګه پوهه شه چې بې شکه صحابه وو رضوان الله عنهم اجمعين اجماع کړې پدې چې ودرول د امام وروسته د ختمېدو د زماني د نبوة څخه دا واجب دي بلکې

دا يې د اهم واجباتو څخه وګرځاوه داسې چې دوی ورباندې ځانونه د دفن کولو د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه مخکې د دې په نصبولو مشغول کړل . الصواعق المحرقة 24/1

نو وګورئ څومره ښکاره معلومه شوه چې د امت وحدت په خلافت او امامت سره راځي دا څومره د حماقت خبره ده چې د خلافت او امامت اعلان دا د افتراق سبب ګرځي، زه وايم که د تحريکيانو د شورى دا غږې هغه وخت وای نو ممکن د ابوبکر بغدادي غونډې يې د ابو بکر صديق رضي الله عنه خلافت هم د امت د افتراق سبب ګڼلی وای خو الحمدلله د نبي صلى الله عليه وسلم صحابه کرام د خلافت په اهميت پوهېدل هغوى د مشرى ، قومپرستۍ او مذهبي تعصباتو څخه مبراء وو .

الغرض د همدې وحدت ساتلو په سبب علماوو د امام او خليفه نصبول دا فرض ګرځولي،

مفسر قرطبي د "إني جاعل في الأرض خليفة " دايت لاندې د مسايلو په لړ کې فرمايي:

**هذه الآية أصل في نصب إمام وخليفة يسمع له ويطاع ، لتجتمع به الكلمة ، وتنفذ به أحكام الخليفة ولا خلاف في وجوب ذلك بين الأمة ولا بين الأئمة إلا ما روي عن الأصم حيث كان عن الشريعة أصم ، وكذلك كل من قال بقوله واتبعه على رأيه ومذهبه .**

ژباړه : دا ايت اصل دی په ودرولو د امام او خليفه کې داسې چې د هغه سمع او طاعت به کيدای شي ددې لپاره چې دين ورباندې راټول شي او د خليفه احکام ورباندې نافذ

شي ، ددې په واجب والي کې هيڅ اختلاف نشته په مابين د امت او نه د امامانو کې مگر هغه چې د اصم نه نقل دي لکه څنگه چې هغه د شريعت نه کوڼ او همدا رنگه هغه چا دا ويلي چې دده په قول يې قول کړی او دده د رايې او مذهب پسې شوی دی . تفسير القرطبي ١/٢٦٤

دغه ډول امام ماوردي فرمايي: **الإمامة : موضوعة لخلافة النبوة في حراسة الدين وسياسة الدنيا ، وعقدها لمن يقوم بها في الأمة واجب بالإجماع وإن شذ عنهم الأصم**

ژباړه : امامت د نبوي خلافت موضوع ده، په ساتنه د دين او سياست د دنيا کې او عقد کول دي، د هغه چا لپاره چې دا ودروي په امت کې واجب دي اگر چې اصم ددې نه خلاف کړی . الأحكام السلطانية صـــ ١٥

دغه ضروت او مهم والی تاسې ددې نه درك کړئ چې أنس بن مالك فرمايي : **"عمر بن الخطاب رضي الله عنه ابوطلحة انصاري رضي الله عنه ته د مرگ نه يوگېنته مخکې جواب واستوه چې يا أبا طلحة ، كن في خمسين من قومك من الأنصار مع هؤلاء النفر أصحاب الشورى ، فلا تتركهم يمضي اليوم الثالث حتى يؤمروا أحدهم ، اللهم أنت خليفتي عليهم .**

ژباړه : ای ابو طلحه ته د خپلو انصارو څخه پنځوس کسان د ځان سره واخله او پدې شوری والاو باندې ودرېږه ترې لرې نه شې ترڅو دريمه ورځ راځي او دوی په ځان

يوکس امير مقررکړی وي ، ای الله ته زما له خوانه ددې ننگهبان يې . الطبقات الکبری ٦١/٣ .

نو وگورئ که د خلافت په اعلان او خليفه په قيام سره وحدت په افتراق بدليدای نو صحابه وو به خليفه او خلافت ته دومره ليوالتيا کوله؟ نه بلکې داخو نابالغ کم عقل کوچني ته هم معلومه ده چې د خلافت مقصد هغه وحدت ، اتفاق او جماعت جوړول دي خو دا چې بغدادي تقبله الله ددې کوشش کاوه او تاسي يې مخالفت وکړ نو معلومه شوه چې اتفاق او وحدت تاسې جوړول نه غوښتل گني تاسې وگورئ الحمد لله نن هم د خلافت مجاهدين په يو داسې اتفاق او وحدت باندې ولاړ دي عرب دي او که عجم نه يې په نظر او عقيده کې اختلاف راغلی نه يې په سياست او تگلاره کې او نه په بل کوم امر او کار کې تر اوسه ځوک نه شي ثابتولی چې امير يې د مأمور نه او نه يې مأمور د امير نه او نه ماتحتو په خپلو کې د يو بل سره دښمني او يو د بل نه براءت کړی وي ،خو ددې برعکس ستاسې ياد کړده تش په نوم جهادي مشران او د دوی افراد تاسې خپله ووينئ چې څه شو نن مو امارت د القاعده نه براءت کوي لرې مه ځئ تاسې تحريک طالبان پاکستان خپلو صفوفو کې د افغاني طالبانو د شتون رسمي مخالفت اعلان نه کړ؟ او رسمي ورقې مو نشر نه کړې چې دلگی مشران دي افغاني جنگياليو ته ځای نه ورکوي او ددې برعکس به سخت انجام سره مخ شي!

ملاهيبتوف او ملا بې وقوف خپلو کشرانو ته له تاسې سره ملگرتيا حرامه اعلان نه کړه ؟ د پاکستان د حکومت سره يې ستاسې جگړه جهاد نه بلکې صرف جگړه ونه بلله؟ دغه

ډول د طالب کونسلګرانو د پاکستان د حکومت دفاع واجب ونه بلله؟ د تحريک بې شمېره لوړ پوړي او ټيټ پوړي يې درته په خوست ،کنړ او کابل کې په مرموز شکل سره د پاکستان سره د پټ قرار داد موافق ترور نه کړل؟ نو تاسې دا وحدت او اتفاق يادوئ؟ تاسې دېته وحدت او اتفاق وايې؟ تاسې الشباب ته نړيوال جهادي ګروپ وايي يعنې ستاسې په اصطلاح هغوی د نړيوالو جمله کفارو سره جنګېږي اګر چې دا خبره بلکل حقيقت نلري ځکه چې هغوې هم ستاسې په څېر لکه د کوهي د چونګنبو په څير له وطني حدودو پښه نه اړوي ، الغرض خو تاسې او امارت خپله بيا د نړيوالو سره دوستي او د هغوی اصولو ته ژمن يی، نو که تاسې دېته وحدت وايی نو دا وحدت يقېني بغدادي تقبله الله خراب کړ ،ځکه چې دې وحدت نه د وحدت الاديان بوی راخيژي، دا وحدت د وحدت الوجود له شرکي نظريې څخه خړوبيږي نو دا ختمول او نړول غوره جهاد دی او دا جهاد الحمد لله الله رب العالمين بغدادي تقبله الله او د هغه خلافت ته وريه برخه کړ .

تحريکي شورى ليکي:

## پنځلسمه وجه :

که موږ له ادنی ځخه اعلی ته ترقي وکړو او ووايو چې که چيرې بغدادي صيب د اهل الحل والعقد لخوا ټاکل شوی هم وي ،خو چې د نور امت د مسلمانانو ورسره موافقه نه وي او اطاعت يې نه کوي نو خلافت يې نه قائميږي او خليفه نشي ورته ويل کيدای ...الخ . صـــ ٨٨

⟸ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

دلته هم تحريکي شورى ځان ته په زړه غوټه پرېښوده او صفايې ونه ويل چې که اهل الحل والعقد هم منتخب کړی وای خو چې زمونږ برای نام جهادي ډلګيو ورسره موافقه او بيعت نه وي کړی نو بيا يې هم خلافت نه قايميده! خو داسې يې ونه ويل بلکې د نور امت مسلمانان يې پدې سره بدنام کړل او ځانونه يې د خير په غونډۍ کښېنول ،خو زمونږ ځواب ددې تحريکي شبهې نه دا دی چې د امت نور ټول مسلمانان د بغدادي خلافت منې هيڅ مسلمان ترېنه انکار نه دی کړی ، انکار چې کړی صرف تاسې کړی او ولې به يې نه کوئ چې د کرسۍ او اقتدار ولږې او تندې په سر راخستې ياست! ولې به يې نه کوئ چې د مذهبي تعصب کڅه مو د سلو نه بره ښکارې!؟ ولې به يې نه کوئ چې په وطنيت او قوميت کې مو ماشومان ، ځوانان ، ځوانان مو بوډا ګان او بوډا ګان مو مړه شول؟! ولې به يې نه کوئ چې د بين الملل کفري ، ملحدانه او شرکي اصولو ته ژمن او په هغې ايمان راوړونکي ياست؟! بيا واورئ خلافت سره بيعت کول سينه کې د

زمري زړه او په زړه کې د ایمان بالله او کفر بالطاغوت عقیده غواړي، دا بیعت او دې جماعت سره ملګرتیا دا د وطنیت په ډنډ کې د ډوب شوېو چونګښو د وسعې کار نه دی الا ماشاء الله تعالی .

دا بیا واورئ چې د نړۍ مسلمانان د خلافت سره جوړ دي الحمد لله او ورځ په ورځ جوړېږي او که ضرورت مو محسوس کړ ،نو د ځمکې په مخ به درته د هر ځای ، هرملک او وطن افراد په نوم او هویت سره در وښایو چې د خلافت سره ولاړ دي، خو ددې برعکس بیا تاسې سره خپل ماتحت او په هندي ونډه کې شریک شوي هفته کې دوه ځله ورانیږي او اتفاق یې درسره نه راځي ، ستاسې د همدې وطني شرکت د مخالفت اعلامیې خو په رسنیو کې رسنیزې شوي چې خپله لګیا یاست په خپلو اختلافاتو او یو بل پسې په خبرو او پیغورنو ستړي یاست ، نو تاسې بیا ولې او په کوم دلیل ځان په حقه او خلافت په ناحقه ګڼئ؟!

تحریکي شورى لیکي:

**اوولسمه وجه :**

که چېرته بالفرض دا ثابته شي چې د یو خلیفه انتخاب اهل الحل والعقد کړی وي، مګر اکثریت د امت ورځخه مخالف وي بیا هم خلافت نه دی منعقد ، او د چا چې دا رقم حال وي چې د انتخاب او اعلان څخه وروسته یې اکثره امت مخالف وي هغه خلیفه نشي کیدای . صـــ 90

## ⇐ الجواب بعون اللّه الوهاب :

کله چې اهل الحل والعقد بیعت وکړي او کس انتخاب کړي نو امت باندې بیا ددې امام سره بیعت کول واجب ګرځي،که بیعت ونه کړي نو دوی ګنهګاریږي او دې باب کې د راغلي وعید مستحق ګرځي دا چې بیا دوی بیعت نه کوي او د بیعت نه یې انکار کوي ددې وجه به کتلی شي، چې عذر دی او که نه ، که عذر وي د شرعي اصولو له مخې به په مقبول تأویل بناء وي ،لکه د معاویه رضي الله عنه عذر نو بیا یې د بیعت نه انکار کول دا اجتهادي امر دی ، اګر چې په خطاء دی خو مجتهد دی او که تأویل یې معتبر نه وي لکه د یزید بن معاویه ، مروان بن حکم او عبد الملک بن مروان چې د ابن الزبیر په مقابل کې بیعت څخه انکار کولو او دغه ډول چې مروان بن محمد د یزید بن ولید په مقابل کې له بیعت څخه انکار کړی و، نو دوی معذور نه دي او نه یې تاویل ته اعتبار دی ، د دوی تأویل هم د روافضو د تأویلاتو څخه دي باب کې کم نه دي، چې نه د لغت نه او نه د شریعت نه جواز ولري او بقول ابن حزم رحمه الله ددې یادو اشخاصو انکار د بیعت د ابن الزبیر رضي الله عنه نه دا خالص بغاوت و .

کما في المحلی بالآثار۱۱/۳۳۵

نو تحریکي شورى چې د خپلې دعوى دپاره کوم دلیل ذکر کړی چې لیکي :

لکه یحي بن ابي الخیر العمراني د خپل کتاب الانتصار فی الرد علی القدریة ۳ جلدپه ۳۳٦ ص کې وایي : **فنحن نقول لما بایع عمر رضی الله عنه ابابکر رضی الله عنه**

**انعقد له الامامة لا بمجرد مبايعته و لكن لتتابع الايدي الى المبايعة و لو لم يبايعه عمر و بقى الناس مخالفين وانقسموا انقساماً ال يتميز فيه الغالب من المغلوب لما انعقدت امامته . صـــــ ٩٠**

نو دا عبارت د بغدادي تقبله الله تعالى سره د بيعت کولو او د هغه د خلافت په حقيقت ردّ نه شي کيدای، ځکه چې دلته دا صفا وايي چې که عمر رضي الله بيعت نه وی کړی او خلک هم په دغه ځای کې همداسې بې بيعته پاتې شوي وای، چا د ابوبکر طرف نيولی وای او چا د بل نو بيا د ابو بکر صديق رضي الله عنه امامت نه واقع کيده، خو دلته د ابو بکر بغدادی تقبله الله امامت او بيعت داسې نه شو، بلکې اهل الحل والعقد هم ورسره بيعت وکړ او د شام او عراق په زرګونو هغو مسلمانانو چې دارالاسلام کې اوسېدل ټول يې په بيعت راضي شول او بيا په مختلفو جبهاتو کې مخلصين امراء او حقيقي مجاهدين د فلپين او قوقاز نه واخله تريمن ، مصر ، ليبيا ، ساحل ، مالی ، صومال ، بورکينافاسو ، دواړه افريقاوې ، خراسان ، هند ، کشمير ، پاکستان ، تاجکستان او مختلفو ګنو ممالکو کې ورسره بيعتونه وشول ، په جبهاتو کې شاته نه شول د بيعت نه کې مګر درې قسمه خلک : يو قسم هغه چې اميران وو او د مشرۍ ، چوکۍ او اقتدار لپاره يې مبارزه کوله او د طواغيتو سره يې پټې رابطې وې ،نو دوی په يو نوم او بل نوم ځانونه له خلافت څخه شاته کړل او د خلافت د بطلان دپاره يې مختلف بهتانونه او تهمتونه وتراشل ترڅو خپل ناپاک منهج پاک او د اسلامي خلافت پاک سپېڅلی او روڼ منهج تور او ناپاک ثابت کړي خو الحمدلله چې کامياب نه شول .

دويم قسم ددوی هغه ملګري او ماتحت افراد وو، چې ددې ناکاره مشرانو بد ورته ښۀ او چټل ورته پاک ښکاري ، ړوند تقليد ، وطني تعصب او اکابر پرستی په نظريه روزل شوي وو ،نو هغوی هم د خپلو مشرانو په قدم قدم کېښوده او د خلافت دښمنۍ ته يې بدې ووهلې او ځانونه يې د بيعت او طاعت نه په بغاوت او سرکشۍ سره بند کړل ، دريم قسم خلک مخلصين وو دا هغه خلک وو چې دوی د هر قسم وطني ، قومي او مذهبي تعصباتو څخه پاک او صرف د اعلاء کلمة الله لپاره يې د جهاد ميدان ته را دانګلي وو ،نو دا خلک بيا په دوه قسمه وو يو قسم هغه وو چې هغوی د الله په خاص فضل او توفيق فوراً حقيقت درک کړ او سمدستي يې د خليفة المسلمين سره بيعتونه وکړل چې ددې قسم امراؤ ، مسؤلينو او ماتحت افرادو تعداد د هر ولايت بې حده زيات دی اکتفاء په اجمال سره کوو.

دويم قسم يکې هغه دي چې د وخت په تېرېدو  يې تحقيق زياتيږي ، په حق يې ذهنونه کولاوېږي او بيعت ته لاسونه را اوږدوي ،ځکه دا قسم خلک اوس هم شته چې بې حده مخلصين دي ،خو بعضې شبهې او تأويلونه يې له دې څخه منع کوي چې د خلافت صف سره يو ځای شي، خو چې ورځ په ورځ يې چې خومره تحقيق زياتيږي دومره يې شبهې ختميږي او د خپل صف په بطلان او ردت يې ذهنونه خلاصيږي ،نو د خپل تأخير باره کې رب نه ښښنه غواړي ، اسلامي دولت او د امت د اتفاق او په نړۍ د رب د شريعت د حاکميت لپاره خپله مبارزه د قريشي امام د قيادت لاندې شروع کوي ، بله وجه د عمراني د عبارت چې ددې نه د بغدادي تقبله الله د خلافت ترديد نه ثابتيږي دا

ده چې عمراني فرمايي : بقي الناس مخالفين يعني که عمر بيعت نه وی کړی او خلک مخالفت کونکي پاتې شوي وای، داسې چې چا يو خليفه کول غوښتلی او چا بل نو بيا د ابو بکر صديق رضي الله عنه امامت نه منعقد کيده .

خو د بغدادي تقبله الله خلافت داسې نه و، يو خو اهل الحل والعقد منعقد کړ بل په مقابل کې يې هيڅ کوم مخالفت کونکې ډلې د بل امام د امامت دعوی نه کوله ،نو معلومه شوه چې اختلاف که وای نو هغه به معتبر وای چې دعوی پکې بلې ډلې د بل خليفه کولی او هغه هم داسې لکه څنګه چې علامه عمراني رحمه الله فرمايلي چې که عمر رضي الله عنه بيعت نه وای کړی او بيا خلکو هم نه وی کړی او مخالفينو د بل امام باره کې ضد کړی وای، نو بيا به امامت د ابو بکر صديق رضي الله تعالی عنه نه واقع کيده او دلته د ابو بکر بغدادي سره داسې نه دي شوي ،نو معلومه شوه چې تحريکي شوری دلته هم د عمراني د عبارت نه غلط تعبير کړی دی ،بس صرف د بادار د خوشحالولو لپاره يې وجوهات زيات کړي خو د وجې وزن او تول ته يې هيڅ فکر نه دی کړی نو دېته وايي " توجيه القول بما لايرضی به قائله " نو د تحريک کشران دې د خپلې رسمي شورا دعوی او دليل او بيا دې ورباندې زمونږ دا ملاحظې او ځوابات وګوري ممکن رب يې سينې حق ته کولاو کړي وما ذلک على الله بعزيز .

تحریکي شورى لیکي

**اتلسمه وجه :**

که چېرې دا ثابته شي چې بغدادي صیب اهل الحل والعقد ټاکلی مګر د نور

امت موافقه او رضا ورسره نشته او له چاسره چې د نور امت رضا او موافقه نه وي هغه

خلیفه کیدای نشي . ص۹۲

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

د تحریکي شورى دا دعوى هم غلطه ده د بغدادي تقبله الله سره بیعت کې امت ندی

شاته شوی بلکې امت ورسره بیعت کړی دی ،ځکه د تحریکي شورى خبره به هله او

هغه وخت درسته منل شوی وای، چې په امت کې بیخي ورسره چا بیعت نه وای کړی

خو مونږ چې ګورو نو د بغدادي تقبله الله سره د امامت په بیعت کې مخالفت ندی کړی

مګر طواغیتو ، ریاست پسندو ، تعصبي او وطني ډلګیو او دې باب کې د اهل الحل

والعقد بیعت او د بعضې امت اتفاق دا د ټول امت اتفاق ګڼلی شي ځکه چې مخالفت

کونکي یې ښکاره په باطل دریځ ولاړ دي .

تحریکي شورى لیکي:

**نوولسمه وجه :**

د بغدادي صیب سره د اهل الشوکة موافقه نشته او له چاسره چې د اهل الشوکة موافقه

نه وي هغه خلیفه کیدلای نشي لکه عمر بن عبدالعزیز رحمه الله اراده وکړه چې قاسم

بن محمد رحمه الله خليفه مقرر کړي مگر پدې قادر نشو ځکه چې د اهل الشوکة موافقه ورسره نه وه ...الخ .

صـ ٩٢ صـ٩٣

## ⇐ الجواب بعون اللّه الوهاب :

د تحريکي شورى دا خبره هم ددې مصداق ده، چې وهم دې کوم ځاى او ډب دې کوم ځاى کوي .

خبره د اهل الحل نه لاړه استخلاف ته ځکه دوى چې کوم دليل راوړى دا د استخلاف باره کې دى او د بغدادي تقبله الله سره بيعت د اهل الحل په شورى شوى او موافقه هم ورسره اهل الشوکه کړې ،ګنې د خلافت د اعلان سره سم د صليبي او د جمله کفري ملتونو حمله د مرتدو په شمول دا څه وړه او معمولي حمله نه وه او نه ددې مخه نيول څه اسان وو، نو که په يقيني توګه اهل الشوکه وو بيعت نه وى کړى او هغوى ولاړ نه وى ،نو ددې حملې مخه د الله د مدد او توفيق نه غير اسانه نه وه دا چې صرف يو کال د موصل معرکې واخيستيه نو دا دليل دى چې د زور او افرادو والا خلک ورسره ولاړ وو ، د نړۍ د مخ نه راغلي مهاجر او د هغه ځاى انصار مجاهدين ، امراء او قائدين وو چې ترننه يې کفارو ، مرتدينو ، روافضو او نورو طاغوتي تنظيمونو ته ځمکه سره تبۍ ګرځولې ، دغه ډول د نورو ولاياتونو اهل الشوکه تاسې ته اهل الشوکه نه ښکاري ،چې ترننه د کفارو سره په جنګ بوخت دي او کفار ترينه د ويرې تبې نيولي دي ، د خلافت

نور ولايات دې پرېږدي تنها دې د حافظ سعيد خان تقبله الله او بيا د هغه نه بعد د خراسان د واليانو تمکين د کفارو او افغاني طالب ملېشو په شمول د ټولو مرتدينو سره د دوی معرکې ، قتال او د شريعت تطبيق ته دې زير شي ،نو معلومه به شي چې يقيناً اهل الشوکه وو ورسره په هر ولايت کې بيعتو نه کړي دي که نه .

د خلافت ددې مجاهدينو او أمراؤ برعکس دې تحريکي شورى لږ تکليف وکړي او مونږ ته دې خپل ياد کړي رهبران او مخور راوښايي چې نن چرته دي؟ او د کفارو سره په کومو اصولو جنگ کوي؟

هو ! ستاسې اهل الشوکه مو وليدل چې د پاکستان مرتد حکومت د لال مسجد بې گناه مسلمانان شهيدان کړل ، د سوات او باجوړ د مسلمانانو وينې يې وبهولې، خو ترننه د طالب ملېشو چې تاسې يې بې حده ستاينې کړي او د نبوي سياست تابعدار مو گڼلي يو چونگ يې دې باره کې د خپلو خولو څخه ونه ويسته ولې چې دې سره دښمن زياتيږي!! خو حقيقت هرچاته معلوم دی چې خپل بادار ته څه نه شي ويلی .

دا خو د خلافت زمري دي چې د خپل رب په مدد نه د پاکستان کافر او مرتد ته امن ورکوي او نه د افغانستان کافر او مرتد ته يې امن ورکړی ، بلکې يو د بل څخه مخکې کوي او د خپل رب په دې فرمان عمل کوي چې په سورة التوبة 36 نمبر ايت کريمه کې فرمايي : وَقَٰتِلُوا۟ ٱلْمُشْرِكِينَ كَآفَّةً كَمَا يُقَٰتِلُونَكُمْ كَآفَّةً ۚ

او وجنګيرې . (د ټولو انواعو) مشرکانو سره لکه څنګه چې هغوی ټول له تاسې سره جنګيږي دغه ډول بل مقام کې په سورة التوبة 5 نمبر ايت کريمه کې فرمايي : **فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا الزَّكَوٰةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ .**

ژباړه : نوپس ووژنئ مشرکان چېرې چې يې هم ومومئ او هغوی ونيسئ او حصار يې کړئ او کنبېنئ هغوی ته (د قتلولو دپاره) په هر ځارنځای کې نو که هغوی توبه وباسي د شرک او کفر نه ، لمونځ شروع کړي او زکات ورکړي نو خوشې يې کړئ الله ښښونکی او رحم کوونکی دی .

**أولئك آبائ فجئني بمثلهم**

**إذا جمعتنا ياجرير المجامع .**

تحريکي شوری ليکي:

**شلمه وجه :**

بغدادي صاحب ځکه خليفه نه دی چې د اکثريت معتبرو خلکو موافقه ورسره نشته او له چاسره چې د وخت د اکثره معتبرو خلکو موافقه نه وي هغه خليفه کيدای نشي لکه امام غزالي رحمه الله د ( فضائح الباطنية په ١٥٥ ص ) کې وايي : **و مدار جميع ذالک على الشوكة و ال تقوم الشوكة بموافقة الكثرين من معتبرى كل زمان**

ژباړه : د خلافت د انعقاد ټول مدار په شوکت باندې دی او شوکت هغه مهال ترلاسه کیږي چې د وخت زیاتره معتبر خلک موافقه ورسره وکړي او له بغدادي صیب سره د زماني زیاتره معتبر خلک څه چې لسمه برخه یې هم ورسره موافق نه دي ، صـــ ۹۳ .

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

د فارسي متل دی (دو پانزده یك سی) دا هماغه زړه شبهه ده چې تحریکي شوری په خپله دې رساله کې تکراري وړاندې کړې ، او موږ بیا وایو چې دغه شورا سره د اسلامي خلافت په مقابل کې نه کوم دلیل شته او نه هم کوم د رد مواد لري ، ځکه یې نو همدا دوه درې خبرې له لکې نیولې دي، د رسالې له سره تاپایه په همدې شخوند وهي ، او بار بار یې په مختلفو صورتونو کی د دلیل په نوم پیش کوي خو بار بار مونږ ددې ځواب کړی لوستونکي دې مخکې فصولو ته مراجعه وکړي .

تحریکي شوری لیکي:

**یوویشتمه وجه :**

پدې باندې د ټولو علماء کرامو اتفاق دی چې د خلیفه په شرایطو کې یو مهم شرط عدالت دی د بغدادي صیب په عدالت باندې د هغه ځای سیمه ییز صحیح المنهج او صحیح العقیده مجاهدین نیوکې کوي او د ګڼ شمیر مجاهدینو په قتل تورن دی په ځانګړې توګه د شام د القاعدې د ځینې مشرانو په وینو یې لاسونه سره دي ، د نړیوال جهاد علماء کرام یې په منهج تنقید کوي ، چې په منهج کې یې ډیره زیاته غلو ، افراط

او خارجيت دی چې دا افراط او غلو په خپله د عدناني له خبرو څخه هم په ښكاره

ډؤل معلوميږي ، ص۹۳ ص۹۴ .

الجواب بعون الله الوهاب : مونږ د تحريكي شورى ددې تهمت متعلق ږومبى دا وايو

چې : **( كبرت كلمة تخرج من أفواههم ) .**

دا د اهل باطل زوړ او مورثي عادت دی چې اهل حق په دروا‌غو او ناحقه باندې په

قسم قسم طعنونو او تهمتونو تورن كړي ،نو دلته هم د تحريكي شورى دا خبره چې د

بغدادي په عدالت د هغه ځای سيمه ييز صحيح المنهج او صحيح العقيده مجاهدين

نيوكي كوي، بلكل خطاء خبره ده دا مجاهدين څوک دي چې په صحيح منهج او صحيح

عقيده باندې دي؟ جولاني مرتد يادوې او كه نصيريان يا روافض؟ څكه چې د خلافت

مقابل كې دا ټول يو منهج باندې روان دي چې هغه په الله كفر او په طاغوت ايمان لرل

دي فقط ، نو لهذا د دوی وژل او يا وينې تويول بې عدالتي نه، بلكې عين عدالت او

اوچت عبادت دی او ددې غيرتي او ايماني كارنامې اميد صرف او صرف د ابوبكر

البغدادي تقبله الله تعالى وامثالهم څخه كيدای شي ، نه د هغه طاغوتي ليډرانو څخه

چې د آی آيس آی او د RAW غړوندي يې په غاړو كې وي ،هغوی خو مرتد ته مرتد

نه شي ويلی نو وژل خو يې لرې خبره ده او بيا د چا خبره چې كل إناء يترشح بما فيه

هر لوښي نه هغه څه راتوييږي چې پكې وي .

دلته هم اخر د تحريکي شورى بغض او عداوت راښکاره شو ځکه تاسې ابتدا او منځ د کتاب وګورئ بغدادي تقبله الله ته يې د حفظه الله دعائيه جمله بار بار استعمال کړې حتى يو مقام کې يې دا د خپل ګوند د مجاهدينو امير ګڼلى لکه تحريکي شورى د بغدادى تقبله الله تعالى متعلق په صـــ ۴۳ کې ليکي :

هو هغه د نورو هغو په څېر د يوه جهادي ګوند امير دى چې په اوسنيو شرايطو کې د اسلام لپاره هلې ځلې کوي .

خو اوس راشئ وګورئ دلته په صــ۹۴ کې څه وايي : په منهج کې يې ډير زياته غلو ، افراط او خارجيت دى!!

نو مسلمانانو تاسې لږ تحريکي شورى ته ووايې چې دا ولې په يو اودس نه ياست کله ورته د خلکو د غولونې په پار حفظه الله دعائيه جمله کاروئ کله ورته د جهادي ګوند امير او د اسلام دپاره هلې ځلې کونکى وايې او کله ورته خارجي؟

نو که دا خارجي او افرطي وي نو خوارجو او إفراطيانو ته خو څوک دعا نه کوي ، د هغوى خو وژل پکار دي ، هغوى ته مجاهد ويل د شريعت نوم بدول دي خو ترننه مونږ په دې پوه نه شو چې ستاسې مخ کوم دى او شا مو کوم دى ،ولې د حق په دښمنۍ کې دې حد ته ورسېدئ چې حق ته باطل او باطل ته حق وايې؟

تاسې پدې ښۀ پوهيدلي ياست چې که هرڅومره د تأويلونو او شبهو په مرسته دا مظلوم مؤمن او د مؤمنانو امير او خليفه ابوبکر بغدادي تقبله الله او د هغه په نهج راروان

خلفاء او ددوی د خلافت کاروان تورن او بدنام کړ، خو خلک مو د تأویلونو په بطلان او رکاکت پوهیږي ، خو سره له دې مو تهمتونه او بې ځایه بدنامي لړول شروع کړي ، خو لله الحمد چې دا حربې مو هم کامیابې نه شوې، ځکه خلک ددې خلافت عمل ته ګوري ، د کفارو سره یې عداوت او برأت ته ګوري ، د توحید او سنت منهج ته یې ګوري او دوی سره د نړۍ د جمله کفارو ، مرتدینو او طواغیتو سرسختۍ او دښمنۍ ته ګوري او بل طرف ته د براي نام جهادیانو حال او صف ته هم ګوري ،چې د نورو کفارو او مرتدینو سره سم دوی هم په خلافت وارونه کوي او په دې کار ځانونه ملل ملحده ته نزدې کوي نو لهذا د داسې خلکو باره کې د بغدادي د خلافت د کاروان ځواب همدا دی چې إذا اتتك مذمتي من ناقص فهي الشهادة لي بأني كامل .

تحریکي شوري لیکي :

## دويشتمه وجه

که د بغدادي صیب بیعت صرف پدې وجه فرض شي چې قریشي دی نو قریشي خو حسین رضی الله عنه هم وو چې له ده او دده له اتباعو څخه ډېر غوره و ، ډېرو غوره خلکو بیعتونه ورسره کړي وو ، د خیرالقرون خلکو ورسره بیعت کړی و، خو بیا هم خلیفه نه وو ... الخ صـــ 95 .

⟸ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

تحریکي شوري دا په ځان لازمـه کړې چې صفحې ډکې کړي نور دا نه ګوري چې کومه خبره کوي چې آیا دا دلیل دی او که نه او یا دا چې دا خبره خو مخکې هم مونږ بار

بار وکړه نو بیا څه ضرورت؟ خو د دوی څخه دغه فکر بیخي اوبو وړی دی ځکه د مخلصو کشرانو مخه اوس په څه باندې د خلافت نه راوګرځوي نو که یوه خبره شل ځله هم وکړي عیب ورته نه ښکاري .

لکه یو له هغې څخه همدا خبره ده چې دوی وایي حسین رضي الله عنه خلافت اعلان کړی وو دا خبره دوی مخکې هم وکړه خو مونږ ددې تفصیلي ځواب وکړ چې حسین رضي الله عنه خلافت نه وو اعلان کړی او نه ورسره چا بیعت کړی و بلکې د کوفیانو غدرو چې نتیجه یې د حسین رضي الله عنه شهادت شوه .

بل که د حسین رضي الله عنه د خلافت متعلق سوچ وشي نو دغه وخت یزید بن معاویه خلیفه و اګر که ظالم و خو دا ړومبی خلیفه و ، معاویه رضي الله عنه ټاکلی و او د هغه منونکو منلی و اګر چې د حسین نه غوره نه و خو د یو خلیفه په موجودیت کې د بل خلیفه ودرول دا د شریعت له رویه منعه دي! نو چا چې حسین رضي الله عنه ته نه خلیفه ویلی او نه یې ورسره بیعت جایز ګڼلی نو وجه همدا ده .

او بله خبره دا ده چې دې باب کې یو لړ احادیث موجود دي له هغې څخه ددې اثبات کیږي چې حسین رضي الله عنه ته خلافت نه میلاویږي بلکې دا به شهید کیږي نو ځکه خو عبدالله بن عمر رضي الله عنهما چې کله حسین رضي الله عنه منع کړ لدې نه چې عراق ته مه ځه او تاته دا مشري نه میلاویږي، نو هغه ونه منله بیا چې کله ابن عمر

رضي الله عنهما ورسره مخه ښهٔ کوله نو غاړه يې ورکړه او ورته يې وفرمايل أستودعك الله من قتيل .

نو د صحابه و دغه فهم و چې له دې قسمه احاديثو نه يې اخستې و چې ده ته خلافت نه ميلاويږي بلکې دا به قتل کيږي والله اعلم .

اما که سوال واقع شي چې حسين رضي الله عنه ولې داسې کول چې خليفه شته او دا د خلافت دعوی کوي نو بعضو ويلي دي چې د يزيد سلطه کامله نه وه نو ده ځکه ددې خروج جواز ځانته ورکولو خو دا خبره غلطه ده ، بلکې صحيح دا ده چې د يزيد سلطه قوي وه او زور يې ډېر و، ولې چې د معاويه رضي الله خلافت ده ته پاتې شو صرف لږ لږ خلک مخالف شو ځکه که د سلطې قاصريت د خروج جواز وګرځي بيا خو د علي رضی الله تسلط هم کامل نه و، نو بس صحيح دا ښکاري چې حسين رضي الله عنه مؤل وو او تأويل يې ده ته جايز کول چې دا د يزيد مخالفت وکړي ولې چې دده ورور حسن رضي الله عنه چې کله د خلافت نه دستبردار شو و نو هغه د معاويه رضي الله عنه دپاره و نه د هغه د زوی يزيد بن معاويه دپاره نو حسين رضي الله عنه دا هم يوه وجه ګڼله بل د کوفې خلکو هغه ته بې شميره خطوط راستولي وو، چې مونږ يزيد نه منو او صرف تا منو ته راشه مونږ درسره ودريږو نو هغه دا فکر وکړ چې دا خلک په ما متفق کيږي نو دې کار باندې مجبور شو خو د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه کرامو هغه ددې باوجود منعه کړ چې مه ځه لکه ابن کثير رحمه الله دده د عراق طرف روانګې ذکر کوي فرمايي :

**وقد تجهز الحسين من الحجاز إلى العراق ، ولم يشعر بما وقع ، فتحمل بأهله ومن أطاعه وكانوا قريبا من ثلثمائة ، وقد نهاه عن ذلك جماعة من الصحابة ، منهم أبو سعيد ، وجابر ، وابن عباس ، وابن عمر ، فلم يطعهم .**

ژباړه : او حال دا چې تیاری وکړ حسین د حجاز نه عراق طرف ته په حرکت کې او ده ته علم نه و د هغه څه چې واقع شوي وو ( د قتل د مسلم بن عقیل) نو ده له ځان سره خپل اهل او خپل اطاعت کونکي واخستل چې تقریباً درې سوه کسان وو او حال دا چې ده لره یوجماعت د صحابه کرامو منعه کړ چې د هغې جملې څخه ابوسعید خدري ، جابر بن عبدالله ، ابن عباس او ابن عمر رضي الله عنهم وو خو ده یې خبره ونه منله . البدایه والنهایه ج ٦ صـ ٢٥٩ .

نو چې کله حقیقت دا شو نو بیا د تحریکي شورى خبره صحیح نده چې وایي حسین خلیفه و او چا په خلافت نه منلو ، وجه یې دا وه چې سلطه یې کامله نه وه ، نه بلکې هغه لا نه خلیفه شوى و او نه یې کوم مرکز د خلافت لپاره اعلان کړى و ، یو لوېشت ځاى هم ورسره نه و، خو ددې برعکس بغدادي تقبله الله اهل الحل والعقد وتاکه او په لکونو انصارو او مهاجرو ورسره بیعتونه وکړل او د برطانیې د جغرافیې د مقدار نه زیاته برخه ځمکه ورسره وه ، نو دده باره کې تخلف د بیعت نه دا نه جایز کوي مګر عنادي او جاهل ،نو تحریکی شورى د خپلې دې خبرې دپاره د منهاج السنة د ٣ جلد ٣٠٠ صفحې نه راوړى عبارت دلیل نه شي کیداى والحمد لله رب العالمین .

تحریکی شوری لیکي :

**درویشتمه وجه :**

د بغدادي تش په نوم خلافت شرعي ندی ځکه له ده سره تمکین او سلطه نشته او له چاسره چي تمکین او سلطه نه وي او د خلافت دعوه کوي او خپل بیعت په خلکو واجب گڼي ، نو دا گمراه او بدعتي او په خلکو دین گډوډوي ځکه چي خلافت لپاره تمکین او سلطه شرط ده ...الخ

صــ ٩٥ صــ٩٦ .

⇐ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

تحریکي شوری بیا د خپل عنادي او تعصبي عداوت کلکه مظاهره کړې تاسي وگورئ بیا یي د مسلمانانو امام او خلیفه ته گمراه ، بدعتي او په خلکو دین گډوډونکی داسي ناکاره القاب استعمال کړي!! لاحول ولاقوة الا بالله .

که داسي وي نو بیا خو تحریکي شوری ته ور یادول پکار دي چي ددې ناکاره القابو والا ته خو تاسي حفظه الله ، مجاهد ، د مجاهدینو امیر او د اسلام لپاره هلي ځلي کونکی ویلی چي ددي خبري نه به رجوع کله اعلانوئ؟ خو ریښتیا ویلي چي: دروغگوحافظه ندارد .

دویم درواغ او عناد یې دا چی وایي تمکین او سلطه ورسره نشته بلکې دا خو تولي نړۍ ولیده او اصدارات یې اوس هم موجود دي چې پراخ تمکین او سلطه رب ورکړې وه

او ښهٔ په نره يې د الله شريعت داسې نافذ کړ چې د کفارو زړونه يې د هغوی د مرتدو

ورونو سره يو ځای په سينو کې ور وچول او اوس هم ورسره په غرب افريقا ، وسط

افريقا او نورو ولاياتونو کې پراخ تمکينونه او قوي سلطه موجوده ده ، د الله شريعت

يې ورکي سل په سله نافذ کړی او ورځ په ورځ يې په بيعت کې بې شمېره مسلمانان

داخلېږي نو لهذا د تحريکي شورا دا دعوی او پدې باندې د معاصر ملا قول د دليل په

طور ذکرکول بلکل بې انصافي او د وضع الشيء في غير محله ښکاره مصداق دی چې

اميد يې له همداسې خلکو څخه کيدای شي ، وبالله تعالی التوفيق والحمد لله رب

العالمين .

تحريکي شوری بيا ددې نه بعد د يو غيرثابت او مردود موقوف روايت يادونه هم کړې

ددې لپاره چې د خپلو کشرخيلو او بې علمه مسلمانانو اذهانو ته دا وسوسه ورواچوي

چې گويا دبغدادي تقبله الله خلافت او موجوده اسلامي دولت ددې روايت له رويه هم

باطل دی ، ترځنگ يې داخبره هم کړې چې مونږ په دوی باندې دا حديث نه حمل

کوو خو وروسته يې بيا ددې مردود روايت د صحيح ثابتولو ناکام کوشش کړی دليل

دی پدی چې ددې حديث نه يې غرض پدې مظلوم خليفه بغدادي تقبله الله او دده په

خلافت ردّ دی .

نو لهذا راځو او ددې تش په نوم حديث د سند او متن دواړو تحقيق خپلو لوستونکو ته

عرض کوو ترڅو د تحريکي شورى د علمي مبلغ سره سره د تعصب کچه هم اندازه کړي

دا روايت نعيم بن حماد بن معاوية الخزاعي رحمه الله المتوفى 228 هـ په خپل کتاب

الفتن کې روايت کړی ،ړومبی خو دده متعلق د محدثينو په توثيق او تجريح کې بحث شته لکه ذهبي رحمه الله په سير کې ددې په ترجمه کې فرمايي وفي قوة روايته نزاع او دده د روايت په قوة کې اختلاف دی . 18/9

دغه ډول نسايي ورته ليس بثقة او بل مقام کې يې ورته ضعيف ويلی دی ، دغه ډول احمد بن شعيب فرمايي دا ضعيف دی وګورئ سير أعلام النبلاء . 27/9

تر دې چې ابن حماد ابوبشر الدولابي په وضع د حديثو متهم کړی دی فرمايي ده به احاديث د سنتو د تقويې او د بعضو فلانيو په باره کې د علماؤ حکايات وضعه کول اګر چې بن عدي دا الزام يو تهمت ګڼلی په نعيم باندې سيراعلام ....

٢٦/٩ او ابن حجر رحمه الله د ابن عدی قول صحيح ګڼلی کما في فتح الباري ٤٤٧/١

دغه د وضع د حديث قول د ابوالاحوص نه هم منقول دی . کما فی سير ٢٦/٩

خو راجح داده چې دا نعيم دومره قوي هم نه دی او دومره ضعيف هم نه دی چې بيخي ساقط شي او کوم چې د وضع حديث الزام وربانديې دی نو دا صحيح ندی والله اعلم ځکه د الدولابي او ابو الاحوص تاييد چانه دی کړی پدې کې

البته نعيم صدوق راوي دی خو روايت يې حجت ندی چې تفرد پرې وکړی شي ،خو توابعو کې پرې استدلال کيدای شي که روايت يې د ثقاتو مخالف نه وي .

اوس که څوک ووايي چې دا خو د بخاري او مسلم رحمهما الله استاذ دی هغوی ترينه خپلو صحيحېنو کې روايت کړی نو ځواب دادی چې مونږ هم ورته کامل مردود ندی ويلی بلکې صدوق يخطئ او يهم راوی دی ، ابن حجر د فتح الباري په مقدمه کې فرمايي : **نعيم بن حماد الخزاعي المروزي نزيل مصر مشهور من الحفاظ الكبار لقيه البخاري ولكنه لم يخرج عنه في الصحيح سوى موضع أو موضعين وعلق له أشياء أخر وروى له مسلم في المقدمة موضعا واحدا.**

ژباړه : نعيم بن حماد الخزاعي المروزي په مصر کې اوسېدلی د لويو حفاظو څخه دی د بخاري رحمه الله ورسره ملاقات شوی خو په خپل صحيح کې يې ترينه د يو يا دوه نه زيات روايات نه دي روايت کړي او نور يې ترې تعليقات نقل کړي او امام مسلم په مقدمه کې دده نه يو روايت نقل کړی فقط . فتح الباري ۴۴۷/۱

ذهبي رحمه الله فرمايي : قلت نعيم من كبار أوعية العلم , لكنه لا تركن النفس إلى رواياته .

ژباړه : زه وايم نعيم بن حماد د علم لوښی دی خو دومره ده چې زړه دده په رواياتو ټيک نه لړوي ، بيا ذهبي رح نقل کوي فرمايي :

**قال الحافظ أبو علي النيسابوري : سمعت أبا عبد الله النسائي يذكر فضل نعيم بن حماد وتقدمه في العلم والمعرفة والسنن ، ثم قيل له في قبول حديثه ، فقال قد كثر**

**تفرده عن الأئمة المعروفين بأحاديث كثيرة ، فصار في حد من لا يحتج به وذكره ابن حبان في (الثقات) ، وقال ربما أخطأ، ووهم .**

ژباړه : حافظ ابو على النيسابوري فرمايي ما دابو عبدالله النسائي الواسطي نه واورېدل چې هغه د نعيم بن حماد فضيلت ، په علم او احاديثو کې يې د هغه مخکې والى بيانولو نو بيا ورته وويل شول چې د حديث د قبلولو متعلق يې څه حکم دی نو ويې فرمايل دده تفرد د معروفو امامانو څخه په ډيرو احاديثو نقلولو کې زيات شوی نو دا دي حد ته رسېدلی چې حجت نشي پرې نيول کيدلای شي ، بيا ذهبي فرمايي ابن حبان په ثقاتو کې او فرمايلي يې دي چې ډېرځلې به خطاء کيده او وهم به يې کولو ، دا شو حال د نعيم بن حماد چې محدثين ورباندې ډېر معتمد نه دي يعنې داسې چې دده هر روايت دې لکه د معتمدو ثقاتو ومنل شي او حجت دې وګڼل شي له دې وجې نه دده د روايت تحقيق به ډېر ضروري وي له هغې وروسته چې ثابت شي بيا به ومنلی شي له همدې وجې دده کتاب الفتن ته هم محدثينو اعتبار نه دی ورکړی امام ذهبي رح فرمايي : **لا يجوز لأحد أن يحتج به وقد صنف كتاب الفتن ، فأتى فيه بعجائب ومناكير .**

ژباړه : دا جايز نه دی چې يو چاته چې هغه دليل ونيسي په ده باندې او حال داچې ده يو کتاب الفتن هم ليکلی چې پکې يې عجايب او منکر روايات راوړي دي .  سير أعلام النبلاء٢٧/٩

نو معلومه شوه چې نه دده په متفرده رواياتو دليل نيول کيږي او نه دا حجت بنفسه کيدای شي او نه يې دا کتاب چې کتاب الفتن دی د عجايباتو او منکر رواياتو نه خالي دی ، دا شو دده او دده د کتاب حال .

اوس راځو دې روايت کې دده استاذانو او د سند د رجالو تحقيق ته ، اول حديث وګورئ دا نعيم فرمايي : **حدثنا الوليد ، ورشدين ، عن ابن لهيعة ، عن أبي قبيل ، عن أبي رومان ، عن علي بن أبي طالب ، رضي الله عنه قال : إذا رأيتم الرايات السود فالزموا الأرض فلا تحركوا أيديكم ، ولا أرجلكم ، ثم يظهر قوم ضعفاء لا يؤبه لهم ، قلوبهم كزبر الحديد ، هم أصحاب الدولة ، لا يفون بعهد ولا ميثاق ، يدعون إلى الحق وليسوا من أهله ، أسماؤهم الكنى ، ونسبتهم القرى ، وشعورهم مرخاة كشعور النساء ، حتى يختلفوا فيما بينهم ، ثم يؤتي الله الحق من يشاء .**

د نعيم استاذان دوه دي يو وليد بن مسلم او بل رشدين بن سعد دی ، ړومبی استاذ يې ثقه او صدوق دی خو مدلس دی او سخت مدلس دی ابن حجر رحمه الله په طبقات المدلسين صــ51 کې فرمايي: **الوليد بن مسلم الدمشقي معروف موصوف بالتدليس الشديد مع الصدق .**

ذهبي په الکاشف 355/2 کې دده ترجمه کې فرمايي : قلت كان مدلسا فيتقي من حديثه ما قال فيه عن مات 195ھـ .

نو ګوره دا شو مدلس او دا اتفاقي اصل دی چې کله مدلس عنعنه وکړي نو روایت یې مردود وي مګر که بل مقام کې یې تصریح په سماع او یا تحدیث باندې واقع شي عیني حنفي فرمایي :

**وعنعنة المدلس لا تعتبر إلا إذا علم سماعه .** عمدة القاري 124/3

علامه قسطلاني فرمایي : **وعنعنة المدلس لا یحتج بها إلا أن یثبت سماعه بطریق آخر** . شرح القسطلاني 286/1

علامه نووي رح فرمایي : وقد قدمنا في الفصول أن المدلس إذا قال عن لا یحتج به إلا أن یثبت سماعه من جهة أخرى . شرح النووي علي مسلم 73/1

چې ددې ټولو عباراتو خلاصه مقصود همدا دی چې د مدلس عنعنه مردود ده ترڅو تصریح په سماع ونه کړي او دلته ولید بن مسلم چې مدلس دی عنعنه یې کړې او تصریح نشته!

او بل داچې دا روایت د نعیم ددې کتاب نه چې ډېر شاته او وروسته پاتې کتاب دی په بل هیڅ کتاب کې هیڅ منل شوی او متعمد راوي ندی نقل کړی او نه یې متابعت شوی .

اوس که تحريکي شورى او يا ددوى هم نظري پدې خوشحاليږي چې زه که وليد بن مسلم عنعنه کړې مدلس دى نو رشدين بن سعد خو مدلس ندى دا خو نعيم د هغه نه هم اوريدلي نو ځواب دا دى چې رشدين بن سعد هم سخت ضعيف دى .

علامه جمال الدين مزي رحمه الله په تهذيب الكمال 191/9 کې دده ترجمه شروع کوي او 195ص پورې يې ذکر کوي هغه دده متعلق چې د کومو اهل علمو جرح نقل کړې هغه داده فرمايى : وقال حرب بن إسماعيل : **سألت أحمد بن حنبل عنه فضعفه ، وقدم ابن لهيعة عليه .**

امام حمد رح نه مې دده متعلق تپوس وکړ نو دايې ضعيف وګڼه او ابن لهيعة يې په ده مقدم وګرځاوه .

بيا مزي فرمايي : **وقال أحمد بن محمد بن حرب الجرجاني عن يحيى رشدين ليسا برشيدين رشدين بن كريب ، ورشدين بن سعد .**

ژباړه : أحمد بن محمد بن حرب الجرجاني د يحيى بن معين نه نقل کړى چې هغه وفرمايل: دواړه رشدينان رشيدان ندي نه رشدين بن کريب او نه رشدين بن سعد .

بيا مزي فرمايي وقال عثمان بن سعيد الدارمي ، وعبد الله بن أحمد الدورقي عن يحيى ليس بشيء .

ژباړه : ابن معین فرمایي رشیدین هیڅ شیء نه دی ، بیا فرمایي وقال عمرو بن علي ، وأبو زرعة ضعيف الحديث .

ژباړه : عمرو بن علي ، و أبو زرعة دواړه فرمایي: رشدین ضعیف في الحدیث دی، بیا مزي فرمایي **وقال أبو حاتم منكر الحديث ، وفيه غفلة ويحدث بالمناكير عن الثقات ، ضعيف الحديث ، ما أقربه من داود بن المحبر ، وابن لهيعة استر ، ورشدين أضعف.**

ابو حاتم فرمایي دا منکر الحدیث دی په ده کې په باب د روایت کې غفلت و او د ثقاتو نه به یې منکرات نقل کول ضعیف الحدیث دی او څومره نزدې دی په وصف کې داود بن المحبر ته او ابن لهیعه ډېر مستور او رشدین ډېرضعیف دی ، مزي بیا فرمایي : **وقال إبراهيم بن يعقوب الجوزجاني عنده معاضيل ومناكير كثيرة**

وقال النسائي متروك الحديث .

وقال في موضع آخر ضعيف الحديث ، لا يكتب حديثه .

وقال أبو بكر بن أبي خيثمة ، عن يحيى بن معين لا يكتب حديثه .

ژباړه : ابراهیم بن یعقوب جوزجاني فرمایي :دده سره معضلات او ډېر منکر روایات وو نسائي فرمایي دا متروک الحدیث دی او بل مقام کې فرمایي ضعیف الحدیث دی احادیث یې د لیکلو قابل نه دي .

او أبو بكر بن أبي خيثمة د يحيى بن معين نه نقل کړی چې دده حديث به نشي ليکل کيدای .

دغه ډول په المعرفه ٦٦/٣ صـ کې يعقوب بن سفيان الفسوي د ضعفاو تذکره کوي او رشدين باره کې فرمايي : ورشدين بن سعد أضعف وأضعف ، رشدين بن سعد ډېر ضعيف دی او ډېر ضعيف دی ،نو دادی دې روايت کې د نعيم د استاذانو تحقيق يو مدلس شو عنعنه يې کړې او بل سخت ضعيف دی چې روايت يې بيخي د قبول د مرتبې نه وغورځېده او بيا داچې نه تنها دوی بلکې دې سندکې بل ضعيف هم شته راځو د هغه تحقيق ته .

دلته سند کې دا دواړه بيا روايت د ابن لهيعه نه کوي دده نوم عبدالله دی ددې عبدالله بن لهيعة باره کې هم همدا ده ،چې دده روايت صرف پخوانی قابل د قبول او هغه هم هاغه چې ابن المبارك او ابن وهب او مقرئ ترينه کړې، ځکه دوی دده په اصولو پوهېدل او دا ابوزرعه رازی رحمه الله فرمايلي دي د هغه نه ابن الجوزي رحمه الله په الضعفاء والمتروکون کې نقل کړی فرمايي :

**وقال أبو زرعة سماع الأوائل والأواخر منه سواء إلا ابن المبارك وابن وهب كانا يتبعان أصوله وليس ممن يحتج .**

ابن الجوزي بيا فرمايي : وقال النسائي ضعيف او امام نسائي هم ورته ضعيف ويلى دى نو گورئ دلته نسايي وايي چې ابن لهيعه ضعيف دى خو بيا هم تحريكي شورى د خپل عادت څخه نه صبرېږي نو ليكي او امام نسائي وايي :

ليس به بأسٌ " پدې كې څه باک نشته صـــ ١٠١ .

نو لوستونكي دې ووايي چې نسايي څه وايي او تحريكي شورى څه وايي؟

ابن الجوزي رحمه الله دا هم فرمايلي **قال يحيى بن سعيد قال لي بشر بن السري لو رأيت ابن لهيعة لم تحمل عنه حرفا وكان يحيى بن سعيد لا يراه شيأ .**

ژباړه : يحى بن سعيد فرمايي ماته بشربن السري وفرمايل گوره كه چرته دې ابن لهيعه وليده گوره چې يوحرف هم ترېنه روايت نه كړې او بيا فرمايي يحى بن سعيد دا ابن لهيعه هيڅ شى نه گڼلو او همدا امام بخاري رح په التاريخ الصغير صـــ ٨٠ كې هم نقل كړي .

بيا ابن الجوزي فرمايي وقال يحيى بن معين أنكر أهل مصر احتراق كتب ابن لهيعة والسماع منه وأخذ القديم والحديث هو ضعيف قبل ان تحترق كتبه وبعد احتراقها .

ژباړه : ابن معين فرمايي انكار كړى د مصر والاو له دې نه چې د ابن لهيعه كتابونه دې سوځېدلي وي او دا ډول دده نه مخكنى او وروستنى (دواړه سماع يې يوشان منع گڼل

ده مصروالاوو) او دا ضعیف وو مخکې له دی نه چې کتابونه یې وسوځیږي او هم وروسته له هغې نه .

بیا ابن الجوزي فرمایي : **وقال عمرو بن علي من كتب عنه قبل احتراقها بمثل ابن المبارك والمقري أصح ممن كتب بعد احتراقها وهو ضعيف الحديث.**

ژباړه : او عمرو بن علي فرمایي چاچې دده نه مخکې د سوځېدلو د کتابونو نه لیکل کړي لکه ابن المبارک او مقرئ نو هغه ډېر صحیح دي د هغه روایاتونه چې د سوځېدو نه بعد ترېنه لیکل شوي او دا ابن لهیعه په حدیثو کې ضعیف دي .

بیا فرمایي وقال السعدي لا ينبغي أن يحتج بروايته سعدي فرمایي چې مناسب نده دا چې دده په روایت حجت ونیول شي . الضعفاء والمتركون ١٣٦/٢

لوستونکو دا شو د دریم راوي ابن لهیعه حال چې تاسې ولیده چې وروستني روایات دده نه قابل د قبول نه دي او دا روایت هم ډېر وروستني دي ،بل تک بیا دا چې دا ابن لهیعة نه تنها ضعیف بلکې مدلس هم دی او دلته یې د ابوقبیل نه عنعنه کړې،ابن حبان په المجروحین کې فرمایي : **قد سبرت أخبار بن لهيعة من رواية المتقدمين والمتأخرين عنه فرأيت التخليط في رواية المتأخرين عنه موجودا وما لا أصل له من رواية المتقدمين كثيرا فرجعت إلى الاعتبار فرأيته كان يدلس عن أقوام ضعفى عن أقوام رآهم بن لهيعة ثقات .**

ما د ابن لهيعة روايات د متأخرينو او متقدمينو څخه اندازه کړل نو ما د متأخرينو په روايت کې د هغه تخليط ومونده او هغه چې د مقدمينو هغه روايات چې هيڅ اصل نه لري نو ډېر مې هغه چې د نورو رواياتو سره مقايسه کړل نو معلوم شو راته چې دا ابن لهيعة تدليس کونکی وو د ضعيفو راويانو نه چې بن لهيعه ثقات ګڼل المجروحين لابن حبان ۱۲/۲ .

نوغرض دا چې ابن لهيعه نه تنها ضعيف دی بلکې مدلس هم دی د ابن حبان نه بغير برهان الدين حلبي په التبيين في ذکر اسماء المدلسين صـ۳٦ باندې په ۳۹ نمبر باندې ذکر کړی او په طبقات المدلسين کې ابن حجر رحمه الله په صـ 54 کې د پنځمې طبقې د مدلسينو څخه په ۱۴۰ نمبر باندې ذکر کړی .

سيوطي رح هم په اسماءالمدلسين کې په 29 نمبر باندې ذکر کړی نو ابن لهيعه د ضعف باوجود مدلس هم شو او دلته يې عنعنه هم کړې ده او مدلس چې بيخي داسې ستوری داسمان هم شي نو عنعنه يې مردود ده ، پاتې خو لا ابن لهيعه ګني د سفيان الثوري ، سفيان بن عيينت ، قتادة بن دعامه ابن شهاب سليمان بن مهران وغيره دا ټول اتفاقي ثقات دي خو چې تصريح په تحديث او سماع باندې ونه کړي نو د دوی عنعنه نه قبليږي نو چې ضعيف شي او تدليس هم کوي نو د ضعيف خو تصريح بالسماع روايت مردود دی نور خو لا لرې خبره ده ، نو لهذا د تحريکي شورا دا بازار تيزي او چالاکي دوی ته فايده نه ورکوي چې ليکي : امام احمد ابن حنبل وايي چې په مصر کې د حديثو په ډېروالي ضبط او اتقان کې د ابن الهيعة په شان کس نه وو . صــــ ۱۰۲

نو لهذا دا خبره د جمهورو ددې تضعيف مقابل کې هيڅ توثيق نه دی بلکې همدا خبره ذهبي رح په الکاشف کې نقل کوي فرمايي وقال أبو داود سمعت أحمد يقول من كان مثل بن لهيعة بمصر في كثرة حديثه وإتقانه وضبطه خو بيا خپله ذهبي رحمه الله د احمد رح ددې قول په ځواب کې فرمايي : قلت العمل على تضعيف حديثه بلکې زه (ذهبي) وايم چې عمل دده د حديث باره کې دا دی چې دا ضعيف دی . الکاشف ١/٥٩٠

نو دا شو څلورم ټک پدې سند ددې روايت کې ،راځو پنځم ټک ته بل راوی پدې سند کې ابو رومان دی دده نوم عبدالملک دی ،ابن حجر رح په لسان الميزان کې فرمايي :

**قال ابن يونس واسم أبي رومان عبد الملك بن يحيى بن هلال الإسكندراني مولى المعافري كان يسكن الإسكندرية ويقال كان أصله من المغرب وكان من أصحاب بن وهب وهو ضعيف الحديث روى مناكير توفي في شوال سنة ست وخمسين ومائتين . لسان الميزان286/3**

خلاصه دا چې ابو رومان ضعيف او د منکر رواياتو روايت کونکی دی نو لهذا دا هغه ابو رومان چې تحريکي شورى دده باره کې ليکلي څلورم راوي ابي رومان دی پدې باندې مونږ کلام پيدا نه کړو . صــــ١٠٢

دا شو د تحريکي شورى د پيش کرده روايت د سند حال چې د ضعف يې پنځه ښکاره او معلوم علتونه تاسي وليدل اوس راځو ددې په متن باندې هم لږه خبره کوو ځکه که د شريعت د اصولو او احکامو نه علم لرونکی خبير انسان ددې متن ته وګوري نو دا

متن د نورو قولي ، عملي او فعلي احاديثو سره سمون نه خوري مثلاً د تور بيرغ باره كې صحيح مرفوع احاديث موجود دي چې د الله د نبي صلى الله عليه وسلم بيرغ تور وو د صحابه او خلفاؤ بيرغونه تور وو لكه امام ابو داود امام نسائي او ترمذي رحمهم الله په خپلو سننو كې روايت نقل كړى ، يونس بن عبيد چې دا د محمد بن القاسم ازاد كړده مريي و، دا فرمايي زه محمد بن القاسم براء بن عازب ته واستولم ددې لپاره چې زه ترېنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ، د بيرغ متعلق تپوس وكړم چې څنګه و ؟ فرمايي فقال : « كانت سوداء مربعة من نمرة » هغه راته وفرمايل چې تور څلور ګوټه د نرمې كپړې نه جوړ و ، نو ګوره حديث كې د تور بيرغ استعمال ذكر دى خو دلته دې روايت كې ددې بيرغ د استعمال نه يو قسم كركه ښودل شوې .

بيا عجيب دا چې وايي بيا به څه كمزوي خلك راښكاره شي چې چاته به څه نه ښكاري خو زړونه به يې د اوسپنې په شان كلك وي او دا به د دولت والاوي او بيا يې ددې نښې ښودلې چې وفابه په وعدو نه كوي حق والا به نه وي نومونه به يې اسم كنيې وي وېښتان به يې لكه د ښځو ځوړند وي ...الخ .

اوس دې دلته هر لوستونكى وګوري دلته د تور بيرغ والا جدا خلك دي او ددې نورو صفاتو والا دا جدا ، نو اوس د تحريكي شورى نه وپوښتئ چې سمه ده مونږ على سبيل الفرض وتسليم ومنله چې دا موقوف روايت په منزله د مرفوع دى او صحيح هم دى نو اوس تاسې ووايې چې د امير المؤمنين بغدادي تقبله الله په خلافت ددې د كومې برخې نه رد ثابتيږي؟

که ړومبي نه يې تاسې رد په خلافت کوئ نو هغه کې خو د اصحاب الدولة جمله نشته او مونږ الحمدلله اسلامي دولت والایو او که دویمه برخه مو مراد وي نو دې کې بیا توري جنډې نشته او الحمد لله مونږ په نبوي منهج جوړ بیرغ لرو نو دا هم په مونږ نه فټ کیږي بل ددې روایت د اسم کنیو متعلق دا خبره هم د نورو مرفوعو روایاتو نه مخالفه ده چې هغې کې صحابه خو پرېږده خپله د الله د نبي صلی الله علیه وسلم دپاره اسم کنیه استعمال شوې تاسې د صحابه وو تاریخ وګورئ د نوم نه په اسم کنیو باندې دوی ډېر مشهور وو ځکه اسم کنیه ایښودل دا سنت او ثابت ده او ددې نه کرکه نه کوي مګر د دین نه ناخبر او د دین دښمنان.

دغه ډول ویښتان پرېښودل او ځوړند ساتل دا هم سنت دي او ممانعت يې هیڅ صحیح حدیث کې نه دی ذکر ها که د ښځو سره مشابهت خبره شي نو دا خو یقیناً منعه ده ،خو بل طرف اسلامي دولت کې تاسې مونږ ته نه شئ راښودلی چې هغوی کې چا د ښځو پشان ویښتان پریښې وي او که بالفرض د یونیم داسې وي نو دا به د هغه خطاء او غلطي وي د دولت منهج الحمدلله ددې نه بري او بیزاره دی که په دې خوک زمونږ دولت ته ګوته نیسي نو دا به سخته خطاء او د علم او عقل سره د دښمنۍ مظاهره وي چې له ده نه صادریږي ګني ولې تاسې کې ویښتانو والا نشته؟ دغه ډول ستاسې په افغاني وطني امارت کې نشته او نه وو که څنګه؟

نو لهذا ددې حدیث نه استدلال کول د هغه چا کار دی چې هغه په حقیقت کې ددې روایت نه زیات ضعیف او مردود وي .

بيا تحريكي شورى يوې بلې مجبورۍ په سر راخستي چې هغه د خپلو کشر خپلو تسلي کول دي پدې چې د بيعت د نه کولو او د خليفه د جماعت نه د خروج کولو د ممانعت چې کوم احاديث دي نو ددې په مفاهيمو کې يې هم د وعيد د کم ښکاره کولو سخت ناکام کوشش کړى چې مونږ به يې تاسي ته دغه ناکامي در په ګوته کړو او ددې سبب يې صرف د موجوده خلافت سره تعصب او دښمني ده فقط او دا وېره چې اوس کشر خپل څنګه او په کوم هنر د خلافت د کاروان سره د يو ځاى کېدو څخه رامنعه کړي ،نود ابن عمر رضي الله عنهما د حديث متعلق چې من مات وليس فى عنقه بيعة مات ميتة جاهلية دى ددې باره کې ليکي : علامه د ميجي په الامامة العظمى کې پدې حديث شريف بحث کړى چې ځيني خلک د دې حديث له ظاهر څخه دا مطلب اخلي چې بيعت فرض دى حاکم چې هر څنګه وي مګر د حديث شريف مقصد دا دى چې هر کله شرعي امام موجود وي په هغه کې د بيعت د صحت شرطونه پوره وي او موانع نه وي بيا بيعت فرض دى . صـــ١٠٣

## ⟸ الجواب بعون اللّٰه الوهاب :

مونږ هيڅ کله او هيڅ وخت د شرعي امام او خليفه نه پرته د بل چاسره د بيعت وجوب او فرضيت دعوى نده کړې، بلکې څنګه چې حديث کې ذکر دي چې بيعت د امام او خليفه سره پکار دى نو مونږ همدا شرعي مفهوم معتبر ګڼو چې کله امام او خليفه موجود شي نو بيعت ورسره فرض ګڼو او تخلف بغير د شرعي موانعو نه ګناه ګڼو او بغير له بيعت

نه مرګ د جاهليت مرګ ګڼو چې د جاهليت د مرګ نه څه مراد دی ددئ وضاحت هم روسته کوو ان شاء الله تعالى .

نو د تحريكي شورى ددې حديث نه دا مقصود بيانول چې ټولو مسلمانانو به ورسره اتفاق کړې وي او هيڅ اختلاف به ورسره د چا نه وي نو بيا به بيعت فرض وي او که داسې نه وي نو بيعت فرض ندی نو دا خبره يې صحيح نده ځکه تاسې د حذيفه رضي الله عنه حديث ته وګورئ هغې کې د الله نبي صلى الله عليه وسلم د فتنو په دور کې د فرقو او اختلافاتو په موجودګۍ کې د خليفه او امام وجود ثابتوي چې دا حديث صحيح مسلم کې په باب الامر بلزوم الجماعة عند ظهور الفتن وتحذير الدعاة الى الكفر کې ذکر دی او په صحيح البخاري کې په باب ( كيف الأمر إذا لم تكن جماعة) کې موجو دی حديث داسې دی :

**حذيفة بن اليمان رضي الله عنهما فرمايي يقول : كان الناس يسألون رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الخير ، وكنت أسأله عن الشر مخافة أن يدركني ، فقلت : يا رسول الله ، إنا كنا في جاهلية وشر ، فجاءنا الله بهذا الخير ، فهل بعد هذا الخير شر؟ قال : نعم ، فقلت : هل بعد ذلك الشر من خير؟ قال : نعم ، وفيه دخن ، قلت : وما دخنه؟ قال : قوم يستنون بغير سنتي ، ويهدون بغير هديي ، تعرف منهم وتنكر ، فقلت : هل بعد ذلك الخير من شر؟ قال : نعم ، دعاة على أبواب جهنم من أجابهم إليها قذفوه فيها ، فقلت : يا رسول الله ، صفهم لنا ، قال : نعم ، قوم من**

**جلدتنا ، ويتكلمون بألسنتنا ، قلت : يا رسول الله ، فما ترى إن أدركني ذلك؟ قال : تلزم جماعة المسلمين وإمامهم ، فقلت : فإن لم تكن لهم جماعة ولا إمام؟ قال : فاعتزل تلك الفرق كلها ، ولو أن تعض على أصل شجرة حتى يدركك الموت وأنت على ذلك.**

ژباړه : خلكو به د الله د رسول صلى الله عليه وسلم څخه د خير تپوسونه كول او ما د شر كول ،ددې غمه چې پکې راګير نشم نو ما وفرمايل اى د الله رسوله !مونږ خو د جاهليت او شر په زمانه کې وو الله دغه خير رانصيب کړی (چې اسلام مو راوړ) نو ايا ددې خير نه بعد هم شر راځي نو هغه وفرمايل هو!نو بيا ما وفرمايل ايا د هغې شر نه بعد بيا هم خير راځي ويې فرمايل : هو!خو په هغې کې به (دخن) ګډوډ والى وي ما وفرمايل دخن څه شى دى ، هغه وفرمايل پس يو قوم به وي چې هغوى به زما د سنت نه بغير نورو لارو او زما د فرموداتو نه بغير په نورو فرموداتو پسې روان وي،ته به د هغوى ښهٔ او بد پيژنې (نو د ښو تابعداري كوه او بدو څخه يې انكار كوه) بيا مې وفرمايل ددې خير نه بعد هم شر راځي ،نو هغه وفرمايل: هو! د جهنم په دروازو به ولاړ دعوت وركونكي وي،چاچې د دوى دعوت قبول کړ ،نوجهنم ته وغورځيدل،نو ما وفرمايل: اى دالله رسوله ! د دوى وصف مونږ ته بيان کړه چې ويې پېژنو هغه وفرمايل: هو!دا به داسې قوم وي چې زمونږ د پوستکي څخه به وي او زمونږ په ژبه به خبرې کوي نو ما وفرمايل: اى د الله رسوله !څه امر کوې راته چې كه زه دغه زمانه مونده کړم نو راته يې وفرمايل :ته دغه وخت د مؤمنانو د جماعت او د هغوى د امام (خليفه)

سره لازم پاتې شه نو ما وفرمايل: که دغه وخت مؤمنان جماعت او امام نه لري؟ نو هغه وفرمايل بيا د ټولو فرقو نه جدا شه اګر که تاته مرګ راشي په داسې حال کې چې ته د ونې په ريښه چک لګونګی يې .

نو اوس دې لوستونکي ښهٔ وګوري دلته د فتنو او د فرقو په موجوديت کې د الله نبي صلی الله عليه وسلم حذيفه رضي الله عنه ته فرمايي : ته دغه وخت د مؤمنانو د جماعت او د هغوی د امام (خليفه) سره لازم پاتې شه ،نو دليل شو پدې چې د اسلام دعوه کونکې فرقې به نورې هم وي، خو حق امام به هم موجود وي نو بيا د تحريکي شورى دا خبره څنګه او په کوم دليل صحيح شوه،چې ټول امت به اتفاق کوي څکه دا دوى شرط ګرځولی د صحت د خليفه او خلافت دپاره ، دغه ډول نور خود ساخته شروط او بعضې هغه واجبات چې دوى د شروطو په منزله کې ګرځولي نو ددې حديث له رويه خو دې امام کې يو هم پوره نشو څکه چې خپله د الله نبي صلی الله عليه وسلم ورته فرمايي چې ددې فرقو په ځای او مقابل کې د مسلمانانو د امام سره وسېږه او که امام نه وي مثلاً نو بيا ورته فرمايي " فاعتزل تلک الفرق کلها " بيا ددې ټولو فرقو نه لرې شه نوګوره د فرقو په موجوديت کې د خلافت د قيام ثبوت د صحيحينو ددې حديث څخه وشو نو بيعت هم د همدې امام سره فرض شو خو نه پوهيږو چې تحريکي شورى د خودساخته تطبيقونو په زور ولې د خپلو کشرانو مخه دحق څخه ډب کوي؟!

بيا تحريکي شورى ليکي :

اول دا چې بیعت فرض کفایي دی چې ځینې خلکو وکړو نو د نورو خلکو څخه ساقطیږي لکه دا د جمهورو مذهب دی .

د ابو یعلی الاحکام السلطانیه ص ۳۰ او د ماوردي الاحکام السلطانیه ۱۵ ص نو بیعت په هر چا او په هر ځای کې فرض ندی . صـــ۱۰۳

⟸ **الجواب بعون اللّه الوهاب :**

ددې خبرې ذکر کولو سره تحریکي شوری ومنله چې د بغدادي تقبله الله تعالی خلافت حق دی خو صرف اختلاف بیعت کې لري او دې باره کې هم وايي چې په هرځای کې په هر چافرض نه دی خو چې بعضو وکړ نو د بعضو ذمه ساقطه شوه او که دوی ددې څخه انکار کوي او وايي چې زمونږ دا مقصود نه دی نو بیا وایو چې ستاسي ددې خبرې مقصود چې بیعت فرض کفایي دی چې بعضو وکړ د بعضو نورو ذمه فارغیږي نو داخو هغه وخت صحیح کیږي چې دوی انکار نه کوي! نو چې کله انکار د بیعت نه کوي د هغوی هم ذمه فارغیږي؟ ایا د علي رضي الله عنه سره بیعت نه کولو کې د اهل شام جزیرې ، مصر او بعضو نور علاقو خلکو ذمه فارغه شوه! نه، بلکل نه بلکې د بیعت نه کولو په سبب ورسره علي رضي الله عنه قتال واجب وګاڼه او خونړي جنګونه یې ورسره وکړل ، نو تحریکي شوری ولې پدې حقیقت اقرار نه کوي چې صفا ووايي کله چې امام سره بیعت وشي نو بیا په خلکو بیعت واجب دی ، که څوک بیا د هغه د بیعت نه لاس اخلي او بې بیعته وخت تیروي نو دا د جاهلیت والاو په نهج روان دي .

تحریکي شورى بيا د جماعت معنا او مفهوم کې د علماؤ متعدد اقوال ذکر کړي، چې په خپل ګمان يې دا باور ورکړى چې د جماعت نه خامخا مراد خلافت نه دى بلکې نور مرادونه هم دي ،خو مونږ وايو چې د جماعت نه معنا او مقصود کې متعدد مرادونه مونږ هم منو چې شته خو دا په هغه وخت کې چې کله امام او خليفه او خلافت نه وي ، خو چې کله خليفه او خلافت وي نو بيا د فرد کامل په اعتبار سره مراد خلافت دى، لکه حديث د حذيفه رضي الله عنه کې تېر شو چې د الله نبي صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : **تلزم جماعة المسلمين وإمامهم .**

ته دغه وخت د مؤمنانو د جماعت او د هغوى د امام (خليفه) سره لازم پاتې شه ،دغه ډول نور بې شماره احاديث ذکر دي چې هغې کې د جماعت ذکر دى په سياق او قرائنو کې ورسره د امير ، د طاعت او د هجرت او د خروج وعيدات ذکر دي، همدا ثابتوي چې د جماعت نه مراد خلافت دى لکه يو دا حديث د ابن عباس رضى الله عنهما چې فرمايي : رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : **من رأى من أميره شيئا يكرهه فليصبر ، فإنه من خالف الجماعة شبرا فمات ، فميتته جاهلية .** صحيح البخاري رقم الحديث 7054 و مسندا حمد رقم الحديث ۲۴۸۷

نو ګوره دې حديث کې هم د امير مخالفت د جماعت نه د خروج سبب ښودل شوى او دا هم ترينه معلومه شوه چې په خروج د جماعت او بيعت ماتوني او نه کول د بيعت دا جماعت ته تاوان نه رسوي مګر بيعت نه کونکي ته تاوان رسوي .

نو دليل شو هغه امام چې په بيعت کې يې مخالفت کونکي هم وي دده امامت او خلافت ته ددوى دا مخالفت تاوان نه رسوي .

د غه ډول د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دا حديث چې فرمايى نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل : **لا يحل دم امرئ مسلم إلا بإحدى ثلاث : النفس بالنفس ، والثيب الزاني ، والتارك دينه ، المفارق ، أو الفارق الجماعة .**

مسند احمد رقم الحديث۴۴۲۹

دلته هم د جماعت نه مراد خلافت دى ځکه يې ددې د جداوالي وعيد بيان وفرمايه او دغه ډول دا حديث د حارث الاشعري رضي الله عنه چې د الله نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل : **وأنا آمركم بخمس الله أمرني بهن ، السمع والطاعة والجهاد والهجرة والجماعة ، فإنه من فارق الجماعة قيد شبر فقد خلع ربقة الإسلام من عنقه إلا أن يرجع .** جامع الترمذى رقم الحديث 2863 دلته هم د طاعت ، هجرت او جهاد يادونه دليل دى چې د امام او خليفه په عقد کې لزوم مقصود دى چې دا په بيعت کولو د خليفه سره واقع کيږي ؟

او د جماعت دغه معنى طبري رحمه الله نه هم ابن حجر رح نقل کړې فرمايي: **قال الطبري والصواب أن المراد من الخبر لزوم الجماعة الذين في طاعة من اجتمعوا على تأميره فمن نكث بيعته خرج عن الجماعة .**

ژباړه : طبري فرمايلي چې غوره قول پدې کې مراد د حديث نه چې د لزوم د جماعت باره کې دی ددې نه لزوم د جماعت د هغه خلکو دی چې په اميريت يې خلک راغونډ شوي وي ،نو چې څوک د دوې د بيعت نه وروسته والی وکړي ،نو دا ددې جماعت څخه ووت . فتح الباري 37/13

نو دا چې تحريکي شورى د جماعت نه د مراد باره کې د علامه شاطبي په تشريح کې دا ورزياتوي او ليکي چې له دې نه مراد د مسلمانانو سواد اعظم دی او سواد اعظم د بغدادي صيب خلاف دی ، سواد اعظم القاعده ، اسلامي امارت ، تحريک طالبان ، شباب الانصار... دي . صـــ۱۰۷

نو دا خو صفا درواغ دي چې سواد اعظم امارت ، القاعدة او شباب وغيره دي ځکه چې دا خو فرقې دي که چرته دا سواد اعظم شي نو دېته بيا بايد جماعت ووايي او کله مو چې ورته جماعت وويلې بيا به ورته خلافت وايي او که خلافت ورته ووايي نو بيا به ورته يو بيرغ او يو امام هم منتخب کوئ حال داچې داسې نه ده بلکې دا هره فرقه خپل مشر لري ،هره فرقه بيل او جدا جدا رهبر لري او جدا جدا بيرغ لري او خپلو کې يې هم يو د بل نه بار بار براءت او بيزاري اعلان کړي امارت د القاعده نه براءت وکړ ، شباب او القاعده که بعضو منطقو کې د بين المللي کفري اصولو موافق د بعضې کفارو سره جنګېږي ، د بعضو نورو سره بيا تعلقات او ولاء لري او امارت بيا د يو سره هم د جنګ او قتال اجنډا نلري .

تحریک طالبان که د پاکستان سره جهاد فرض ګڼي نو د دوی په قول اسلامي امارت بیا د پاکستان خلاف جنګ جهاد نه بلکې محض یو جنګ بولي ، جهاد نه او د پاکستان سره بې حده خوږه وروروليې پر مخ وړي ، نو دا ځنګه او په کوم دلیل د جماعت مصداق او سواد اعظم وګرځي ، بیا که دا سواد اعظم او جماعت شي نو دې کې به بیا د نړۍ هر مسلمان ته د داخلېدو امر او بلنه وي! امارت خو مو د مهاجرو نه براءت وکړ ، تاسي تحریکیانو د افغانانو څخه براءت وکړ، نو د نورو ملکونو مسلمانان به څنګه ځانته نزدې پرېږدئ!

بیا دا که سواد اعظم وي او جماعت وي نو بیا خو پکار ده ،چې د ځمکې په ټول مخ باندې د ټولو مسلمانانو وکالت او هغوی ته ځای ورکړي او د ځمکې په مخ هیڅ ټوټه د خپل جنګ او شتون دپاره محدوده نه کړي ، خو امارت مو د افغانستان او تحریک مو دپاکستان او الشباب وغیره مو د نورو محدودو ځایونو نه بهر قدم ایښودل او دجنګ ایجنډا ګناه ګڼي.

نو معلومه شوه چې دتحریکي شورى یادکړه فرقې دغه فرقې دي، جماعت نه دي بلکه د خلافت په اعلان سره ترینه مخلصین د خلافت ملګري شول او کوم چې پاتې شو،نو د هغې تفصیل مونږ مخکی کړی دی،نو د جماعت نه مراد خلافت دی ،ځکه جماعت امام لري او هغه نه وي مګر د خلافت خلیفه ، نو کومو احادیثو کې چې د طاعت حکم شوی د جماعت نه د وتلو وعید اورول شوی او جماعت سره د لزوم امر راغلی، نو ددې نه مراد خلافت ، د هغې امیران او مسؤلین دي چې د شریعت له مخې یې طاعت په

شرعي امورو کې په نص د کتاب الله او حديث د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ثابت دی ،چې لله الحمد والمنة چې زمونږ په عصر او زمانه کې ترینه مراد د ابوبکر بغدادي تقبله الله تعالى خلافت دی او ددې مقابل کې چې کومې ډلګۍ او تنظیمونه دي نو دا فرقي دي چې د خلافت د موجودیت په وخت کې ددې نه ځان ساتل فرض دي ،ځکه دا اتفاق د مسلمانانو مجروح کوي او خلافت د هرقسم وطنيت ، قوميت ، لسانيت ، مذهبي تعصباتو او د جمله فرقه واريت نه پاک او مبراء هرمسلمان او د هرځای مسلمان ته په دې جماعت کې د داخلېدو بلنه او دعوت ورکوي، خو د تحريکي شورى يادې فرقې د اکثر مسلمانانو مخې ته دېوال جوړ شوی ،نو ددې دېوال ماتول دا په امت واجب دي ځکه چې څه وخت مسلمانان په يو امام راجمعه شي او بل کس راپورته کيږي او ددې امام دا جماعت خرابوي ،نو که دا څومره نيک او افضل انسان ولې نه وي د صحيح مسلم حديث کې راځي چې " فاقتلوه كائنا من كان " دا قتل کړئ که هرڅوک هم وي .

نو چې د طواغيتو او بين المللي اصولو ته ژمن  او هغوی سره ولاء لرونکي او بيا د خلافت مقابل کې ورسره مددکونکي او تحالف کونکي وي، نو دا خو بيا علني مرتدين دي ،دوی که بيخي د بيت الله غلاف هم د ځان نه تاو کړي وي ،نو ختمول يې پکار دي ولو که د خلافت مقابله او مخالفت ترينه صادر هم نه شي .

اوس که څوک ځواب کوي چې د داسې کس قتل  هغه وخت جايز دی چې دا د هغه امام جماعت کې تفرقه اچوي ،چې امت وربانديې راټول شوی وي دلته خو تحريکي

شورى په قول د امت لويه برخه په بغدادي تقبله الله تعالى نه ده راجمعه نو بيا څنګه ددې مخالفت کونکي قتل جايز دى؟

نو ځواب دا دى چې د امت اجتماع په خلافت کيږي هيڅ کله او هيڅ وخت کې د خلافت نه بغير په بل تنظيم او فرقې باندې امت نه جمعه کيږي او نه جمعه شوى، نو چې کله خلافت اعلان شي ،بس دا د امت د وحدت ، اتفاق او اجتماع غړ دى ،چې اعلان شو اوس به هر مسلمان دېته ځان رارسوي او ددې منلو ته به غاړه ږدي،نو چې يو کس خپله هم نه منقاد کيږي او بل هم نه پرېږدي چې دېته منقاد شي ،نو دا ددې اجتماع او اتفاق ماتوونکى دى چې مرګ يې روا دى اوکه څوک مراد ددې نه داسې اتفاق تصور کوي چې بيخي يې څوک مخالف نه وي ، نو بيا خو د تحريک يادکړه فرقو باندې هم اتفاق نشته ، دوى بيا د خپلو مخالفينو سره څه کوي؟ د امت خو پرېږده خپله هم دوى به خپلو کې اتفاق نلري ، لرې مه ځئ امارت ته وګورئ ملا عبدالمنان نيازى د امارت نه د خپلې جبهې سره وانه وړېده او د همدې امارت سره يې خونړي جنګونه ونه کړل؟ د ملا دادالله ورور منصور دادالله د امارت مخالفت ونه کړ او د خپلو افرادو په شمول ترينه وانه وړېده او ورسره ونه جنګېده او داسې نور مخالفتونه!

تحريک طالبان مو خپلو کې په څومره شديد اختلاف سره ککړ دي ولې خلکو ته علم نشته څه؟ د وطن نه بهر بيخي اجنډا نه لري، داسې مو دا نورې فرقې خپلو کې څومره بې اتفاقى باندې اخته دي ،نو چې کله خپلو کې ستاسې دا حال دى نو د امت به درباندې څنګه او په کوم دليل اتفاق راشي او درباندې به راجمعه شي ، نو چې تاسې

د دومره اختلاف باوجود چې خپلو کې د يوې يوې فرقې اتفاق نشته بيا خپلو کې د ټولو فرقو مو بيخي اتفاق نشته، نو د امت اتفاق خو لرې خبره ده!! نو چې تاسې ددې باوجود د اتفاق او اجتماع مدعيان ياست ،نو خلافت خو لله الحمد په دوه دېرش ملکونو کې ولايات اعلان کړي او د ځمکې په مخ د هرکافر او مرتد سره دښمني او سخت ترين جنګ کې اخته دي او هرمسلمان ته يې سينه او غيږ کولاو کړې ، هرمسلمان خپل ورور او رعيت ګڼي ، نو دا اتفاق او اجتماع نده نو نور څه دي!

نو دا د امام احمد رحمه الله د قول بعينه مصداق دی چې تحريکي شورى په صــ ١٠٩ کې ذکر کړی چې هغه وفرمايل : اتدرى ما الإمام الإمام الذى يجمع المسلمون عليه كلهم يقول هذا امام فهذامعناه .

نو الحمد لله نن چې چرته هم مسلمانان دي، هغوی دا مني چې ابوبکر بغدادي د مسلمانانو خليفه وو او نن ابو حفص الهاشمي حفظه الله ورعاه د مسلمانانو امام او خليفه دی او په ټوله نړۍ کې د مسلمانانو سرپرستي او وکالت کوي او د هرکافر نه يې د مسلمانانو د پور اخستلو په خاطر جنګ شروع کړی ،که څه هم وخت به ونيسي خو دا عهد به پوره کوي ان شاء الله تعالى او اختلاف نه کوي پدې کې مګر طواغيت چې د هغوی خلاف کوم تاوان نه رسوي او بل هغه ناخبره مسلمانان چې د وخت طواغيتو او درباري بلاعمه وو په وسوسو او شبهو سره مخالفت ته مجبور کړي نو ددوی مخالفت ته هم اعتبار نشته .

نو غرض دا چې د تحريكي شورى دا خبره چې د جماعت باره كې ليكي " له دې نه مراد د مسلمانانو سواد اعظم دى او سواد اعظم د بغدادي صيب خلاف دى ، سواد اعظم القاعده ، اسلامي امارت ، تحريک طالبان ، شباب الانصار... دي . صـــ١٠٧

دا بيخي تور درواغ تهمت او هسې بې ځايه دعوى ده .

دغه ډول بيا تحريكى شورى خپلو كشرخېلو ته د ډاډ وركولو بل ناكام كوشش دا كړى چې په حديثو كې د بيعت نه كونكو متعلق راغلى وعيد چې د جاهليت د مرگ وعيد دى ددې راغلي وعيد باره كې يې هم زور لگولى او د يو عارفانه تجاهل مظاهره يې كړې ترڅو خپلو كشر خېلو ته طفلانه تسلي وركړي او د خلافت د حق كاروان سره د ملگرتيا د نه كولو باب كې پښېمانتيا او افسوس ته فكرمند نه شي ، نو دې باب كې يې د عيني او قاضي عياض بعضې اقوال راوړي او بيا ماحصل ذكر كوي ليكي :

حاصل دا دى چې دا حديث په تشبيه حمل دى يعنې كوم سړى چې د يو مشر د بيعت او اطاعت نه غير وخت تيروي نو دا د جاهليت والاو په څير دى ، د اهل جاهليت سره تشبيه پدې كې وركول شوې چې اهل د جاهليت به گډوډ وخت تېرولو د يو مشر په اطاعت كې يې وخت نه تيرولو او دا هم د امام او خليفه د اطاعت نه بغير وخت تيروي او د حديث مقصد دا نه دى چې گواكې دا كافركيږي بلكې مقصد دا دى چې په بيعت نه كولو گنهگار دى خو پدې شرط چې خليفه شرعي خليفه وي .

او ابوبکر البغدادي حفظه الله شرعي خليفه ندی نو په بيعت نه کولو سړی نه گنهگاريږي .

ص۱۱۰

⇐ الجواب بعون اللّه الوهاب :

اول خو دي ټول مسلمانان دا واوري چې زمونږ قطعاً دا دعوی مطلق نده چې چا هم بيعت ونه کړ نو گويا دا کافر دی بلکې تحريکي شوری ، د دوی هم نظري او هم صفتي د نورو تهمتونو غوندې مونږ باندې دا تهمت هم لږوي چې گويا اسلامي خلافت سره بيعت نه کونکي دوی د يو مخې کافر او مرتد حسابوي ،نو ځکه يې د خپلې رسالې په اخر کې دا بحث ښېړلی نو چې اوس يې ښېړلی او يو قسم تهمت يې په مونږ لږولی نو مونږ مجبور يو چې اوس دې باره کې هم لوستونکو ته خپل دريځ واضح کړو نو ابتدا دې باب کې له دې خبرې ښخه کوم چې د يو امام او خليفه سره بيعت نه کول خپل صورتونه لري يوکس به بيعت د بعضو شبهاتو په وجه نه کوي نو اسلامي دولت به ړومبی د ده شبهې او سوالات ځواب کوي که له هغې بعد يې بيعت نه کولو بيا به شرعي لجنه د دوی د بيعت د نه کولو ښارنه کوي ، چې دوی بيا نور مخالفت کوي او کهنه محضې خاموش کيني صرف بيعت نه کوي او يا ددوی بيعت نه کول اسلامي دولت ته نور تاوان رسوي او که نه.

مثلاً: که د دوی په وجه افتراق راځي په صف کې او اختلاف پیداکیږي د وینو تویولو ، د کورونو او ښارونو ورانولو سبب جوړیږي، نو بیا به لجنه د هغې موافق فیصله کوي نو که اختلاف نه جوړیده عدم بیعت یې تاوان نه رساوه صف ته همداسې به پرېښودلای شي ،لکه سعد بن عباده رضي الله عنه د ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره بیعت ونه کړ نو ابوبکر رضي الله عنه هم ورته هیڅ ونه ویل او که عدم بیعت یې د شبهو او نیوکو په سبب وي ،نو دا به د اهل علمو د شرعي لجنې له طرف نه ځواب کیدای شي که ځواب شوې او دوی ومنلې فبها ونعمت نو بیعت به وکړي او طاعت به شروع کړي،خو که ویې نه منلې او مخالفت یې بیا هم کولو نو د دوی خلاف به جنګ کول جایز وي ،خو پدې مخالفت به دوی کافر او مرتد نه ګڼل کیږي ددې مثال لکه د معاویه رضي الله عنه او د علي رضي الله عنه ترمنځ مخالفت او جګړه کول وو ځکه معاویه رضي الله عنه بیعت نه کولو  پدې وجه چې قاتلین د عثمان رضي الله عنه د علي رضي الله عنه په صف کې دي او ترڅو چې علي رض دا قاتلین قصاص او یا یې مونږ ته حواله نه کړي نو ترهغې ورسره زه بیعت نه کوم علی رضي الله عنه یې ددې شبهې ځواب هم وکړو ،چې یو خو دا قاتلان بالتعیین مشخص نه دي ، بل حالات تازه خراب شوي ګډوډې ډیره ده چې د اختلاف فتنه ختمه شي او لږه ارامي شي نو د تحقیق ، تفتیش نه بعد به بیا مجرمین ونیسو او محکمه به یې کړو داسې زر او فوراً څنګه او په کوم دلیل بغیر له شاهد او لیدلو زه څوک راونیسم او قصاص ترېنه واخلم خو معاویه رضي الله عنه او د هغه ملګرو ددې د منلو نه انکار وکړ ،نو علي رضي الله عنه ورسره جنګ وکړ او تر

اخره ورسره وجنګېده نو د بیعت دغه ډؤل منکرین دا کافر او مرتد نه دي ځکه چې ترننه په امت کې نه علي رضي الله عنه او بل کوم مسلمان معاویه رضي الله عنه او یا د هغه ملګرو ته پدې کار سره کافر او مرتد ویلي دي البته په خطا ء یې ضرور ګڼلي دي خو مجتهد مأجور وي .

بله ډله چې بیعت نه کوي او مخالفت کوي  او مخالفت یې هم د خوارجو په اصولو ولاړ وي د خلیفه او امام او د هغه د رعیت او افرادو تکفیر کوي او د مسلمانانو وینه ، مال او عزتونه مباح کوي نو دا خوارج دي د دوی سره قتال کول او د دوی قتلول دا غوره جهاد دی ترڅو چې د الله دین ته صحیح راګرځیدلي نه وي او د امام طاعت ته یې غاړه نه وي ایښې، نو د دوی سره به ترهغې قتال کیدای شي او د دې د قتال امر خپله د الله د نبي صلی الله علیه وسلم څخه منقول دی .

او که د بیعت نه کول یې د کفري او شرکي اصولو په بناء ولاړ وي داسې چې د نړۍ د کفري او طاغوتي هیوادونو سره د تعلقاتو ، ولاء او اړیکو په سبب وي نو بیا خو دا مرتد دي داسې خلک په بیعت نه ،بلکې په کلیمه د شهادت او د کفارو نه په کامل براءت او عداوت مسلمانیږي او بیا به ورته  د امام او خلیفة المسلمین په طاعت باندې اجر میلامیږي او که داسې نه وي نو نه یې مخالفت د خلافت صحت او د خلیفه امامت ته تاوان او زیان رسوي او نه یې بیعت ځانونو ته فایده ،نو دا خبره غلطه ده چې مونږ مطلق بیعت نه کونکو ته کافر وایو او مرګ یې رواه او جایز ګڼو بلکې دي کې اقسام او انواع دي .

راغلو ددې حديث مصداق او معنا ته چې " ومن مات وليس في عنقه بيعة مات ميتة جاهلية "

نو ددې مفهوم او معنا کې هم مونږه لله الحمد د سلفو متبعين يو ، يوه معنا يې همدا ده چې ددې نه مراد کافر نه ،بلکې د جاهليت محض وصف مراد دی چې څنګه د جاهليت په زمانه کې خلک بې اميره او بې طاعته په خپل سر وو، نو داسې دا کس هم حساب کړی شو .

حافظ ابن حجر رحمه الله د کرماني څخه نقل کړی فرمايي : والمراد بالميتة الجاهلية وهي بكسر الميم حالة الموت كموت أهل الجاهلية على ضلال وليس له إمام مطاع لأنهم كانوا لا يعرفون ذلك وليس المراد أنه يموت كافرا بل يموت عاصيا .

ژباړه : او مراد په مرګ د جاهليت سره د مرګ حالت دی هغه چې د جاهليت والاو پشان وو چې په ګمراهۍ کې وو او هيڅ د طاعت امام يې نه لرلو ځکه چې دوی دا نه پيژندلو او دا مراد نه دی چې دا کافر مري بلکې ګناهګار مري.

خو بيا ددې نه بعد متصل فرمايي : ويحتمل أن يكون التشبيه على ظاهره ومعناه أنه يموت مثل موت الجاهلي وإن لم يكن هو جاهليا أو أن ذلك ورد مورد الزجر والتنفير وظاهره غير مراد .

او دا هم احتمال لري چې تشبيه به خپل ظاهر باندې بناء وي او معنا به يې دا وي چې دا مړکيږي پشان د مرګ د هغه جاهل چې د جاهليت د زماني و، اګر چې دا هغه جاهل

هم نه دی ، او یا دا چې دا وعید د زجر او تنفیر په مقام کې وارد شوی او ظاهر يې مراد نه دی .  فتح الباري ١٣/٧

نو معلومه شوه چې سلفو صرف دا یوه معنا نده ذکر کړې ،چې عصیان دی فقط لکه څنګه تحريکي شورى دعوى کړې بلکې احتمال د کفر هم شته نو تطبيق همدا صحيح دى چې دا خپل خپل صورتونه لري لنډ مثال يې همدا دی چې کوم خلک مسلمانان دي او د خلافت سره د بيعت کولو نه قصداً عمداً وروسته شوي، کولی شي چې دوی نصرت وکړي او د خليفه طاعت او بيعت وکړي خو ددې باوجود يې نه کوي او باعث وربانديې خوف ، خواهش ، غفلت او يا سستي ده نو دا ګناهګار مسلمان دی ، خو که مړ شو دغه وعيد بنا بر اوله معنا چې دلته مونږ ذکر کړه ورته شامل دی نور يې الله ته سپارو إن شاء غفرله وإن شاء عذبه قدر ذنبه ترك البيعة .

نو على کل حال د يو مسلمان لپاره ضروري شوه چې ددې وعيد او ناکاره وصف نه په پوره توګه د خپل خالق او مولا نه نجات او پناه وغواړي او دا بل چې په ترک البيعت سره کافر مري نو د هغې لنډ مثال دغه کلبمه ويونکي طاغوتي  تنظيمونه دي ، نو د دوی حال خو هر چاته معلوم دی چې ترک البيعت يې محضې د کفري ملتونو د قوانينو او اصول د عملي کولو ، د هغوی د صف د تقويه کولو دپاره دی نو داسې خلک د همدې دويمې معنا مستحق دي چې دا مړ شي لکه يو جاهلي چې به د جاهليت په زمانه کې مړ کېده او لکه خر داسې به مرداريده نو  ددې قسم خلکو باره کې يې همدا معنا مراد ده .

خو اخرکې دا خبره بیا د تحریک په شمول ټولو تش نامه جهادي تنظیمونو کشرانو ته په بې حده اخلاص سره کوو او دا خیرخواهي یې کوو چې حق درک کړي او د خپلو خرڅ شوو مشرانو ړانده او بې دلیله تقلیدونه پرېږدي ، ځانونه د اسلام په نوم او جامه کې د اسلام د دښمنۍ څخه راوګرځوي .

په الله قسم دا عیب او پیغور نه دی چې پرون تحریکي او امارتي وې او نن د خلافت اسلامي او د رب د شریعت نافذونکی سترمجاهد وګرځې، بلکې عیب ، پیغور او نه جبرانیدونکی تاوان به دا وي چې ته ځان ته مجاهد او مسلمان وایې ، ځان د اسلام د حاکمیت دپاره قربانوې خو په منځ کې د طاغوت په لاره کې مصرفیږې او اخرت دې د لوي شرم او ذلت سره مخ کیږي .

تاته که تراوسه دا علم نه شته چې ته په باطل او منحرف منهج باندې ولاړ یې او بر علیه اسلام د کفر صف کې جنګیږې نو لږ دې د امارت حال ته زیر شه څه شو هغه زرګونه شهداء او معلولین! نن د هغوی د قاتلینو (حربي اصلي کفارو او مرتدینو) سره کومه رویه او خوږه وروروليي شروع شوې ، دا دومره طویله معرکه صرف د همدې دپاره وه چې کفار مو دوستان او غټ خیټي مشران مو درته ازاد شي بس همدا دین شو ، همدا د شریعت تطبیق شو ، همدا ستاسې د قتال مقصود شو؟ نور سوچ خپله وکړه؟ همدا حال د تحریک طالبان پاکستان هم واخله ، د افغاني طالب ملېشو نه دوی هم څه کم ندي دا دی له اوس نه بین الملل ته عذرونه او سپیناوی کوي او د هغوی اصولو ته ژمن دي ، دوی هم د کابل د ګدۍ غوندې له کفارو څخه ستاسې په استعمالولو د اسلام

اباد ګدی، حاصلول غواړي نورخپله فکر مند شئ ، که تاسي وغواړئ نو د دين دپاره صحيح استعمالېدای شئ داسې چې فايده دې د شرق او غرب مسلمان ته ورسيږي، نه دا چې هسې د طاغوت په لار کې د اسلام په دښمنۍ او د مسلمانانو په ضرر استعمال او د جهنم خشاک وګرځې ، نو ددې ړوند بيرغ لاندې ژوند تېرولو او د خرڅ شويو مشرانو نه د جداکېدلو لار غوره کړه د صوفي ملا ايبت له بيعت څخه خپله غاړه ازاده کړه او دا عين عزت دی او د مؤمن شان دا دی چې دا به د خپل دين په هره وړه او لويه مسأله کې تحقيق کوي او د حق ملګرى کيږي به باقي د الله دين هيڅ چاته محتاج نه دی، خو که څوک د حق طلبګار وي نو دا به ځان د دين محتاج ګڼي ، الله متعال فرمايي : وإن تتولوا يستبدل قوما غيركم ثم لايكونوا أمثالكم .

اللهم ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وارنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه .

فهرست